# د رحمان بابا دیوان

**دوهمه بڼه**

محترمه لوستونکیه:
السلام علیکم.
خوښ یم چي د پښتون قوم ددې ستر عارف شاعر، جامِع دیوان تاسو ته وړاندي کوم. عبدالرحمن بابا نه یوازي په مور حق لري چي ویې پیېژنو او شعر یې ولولو، بلکه دا د هر چا حق دی چي د بابا له نصیحته ډک کلام وروړسېږي. پدې دیوان کي د عبد الرووف بېنوا صاحب، تبسم صاحب، حبیب الله رفیع صاحب، غروال صاحب او نورو له لیکل شویو دیوانونو څخه، اخیسته او سره پرتله شویدي. څکه نو په یوه ځای کي به دوه ډوله لیکنه شوې وي، او په (/) علامه، سره جلا شوېدي. پوهاند دي خپل نظر را واستوي چي کوم ټکی یې باید انتخاب شي. هڅه شوېده چي د افغانستان په مرکزي معیاري پښتو باندي ولیکل شي (ترڅو یې ویل و ټولوته آسانه وي).
ستاسو په مرسته به دا دیوان په راتلونکي کي په لا غوره توګه وړاندي شي. زه د ادبیاتو مسلکي نه یم، یوازي می ځان دغه کار ته مجبوره بللی. په هره برخه کي چي غلطیاني وینئ، مهرباني وکړئ را په ګوته یې کړئ.
هغوي چي غواړي ددې دېوان په سمون کي برخه واخلي، هغوي ته یې سافت کاپي (په ایم ایس ورډ کي) هم استوم.

ډاکټر محمد هاشم نظروال
16477701013+
mnaz@proton.me

فهرست ۲


**الف**

**ب**



**ت**



**ث**



**ج - ح**



**خ**

**ای تر دی**

66. چاچي نمري وي په خپلو وينو وللي
67. د لمر مخ چي ستا له مخه نه شرميږي ۱۲۵
68. صبحدم چه هغه ياررا باندي راشي
69. کر د ګلو کړه چه سيمه دي ګلزار شي
70. هر وګړی چه منصور غوندي په دار شي ۱۲۶
71. تبسم مي د وګړي په روزګار شي ۱۲۷
72. چه شهيد د تورو سترګو په خنجر شي
73. چه غبار دا ستا د لاري په خوا ورشي
74. که دي غم د درست جهان تر زړه چا پير شي
75. له دې کټه له پوزيه خو به ولاړ شې
76. که د زرو مېږو سر/سړی وي خو چه مړ شي ۱۲۸
77. هغه دم چه زړه ملال شي
78. هر چه ستا په زنخدان کښي ئي منزل شي ۱۲۹
79. که سل ځله هم کنار و هم بغل شي ۱۳۰
80. که د زړه په وينو رنګ د چا ګوګل شي
81. هغه زړه چه خدای روښان کا جام د جم شي
82. چه مجنون غوندي يو موټی استخوان شي ۱۳۱
83. آشنائي توره بلا ده آشنا مه شې
84. د عاشق بې خپله ياره قرار نه شي
85. د سکوت په تيغ چه ژبه بريده شي ۱۳۲
86. چه سړی له بله بد وايئ بد ګوئ شي
87. وقت د عيش و طرب تير شه خزان راغی
88. په اول کي تا د عشق وهلې لافي
89. يا دا ستا چشم و ابرو وينم په خواب کي ۱۳۳
90. ستا د ميني ګوهر نشته په هر آب کښي
91. زړه مي بايلو ستا په مينه محبت کښي
92. مغرور مه اوسه د عشق په کار و بار کښي ۱۳۴
93. مدام ناست يم وچ ګوګل سترګي په نم کښي
94. هسي بې ياره خفه يم په جهان کښي ۱۳۵
95. د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښي
96. زړه مي ډوبډوب کيږي ستادغم په غلبو کښي
97. هسي خوښ يم ستا د در په خاکستار کښي
98. سپين مخونه تور کودی شي په پير کښي ۱۳۶
99. چه وصال د خپل جانان مي دی موندلی
100. ماچي سترګې و ګلرخ ته واړولې
101. يوځل ولېدای د يار پرېشانې زلفې
102. بد لوې په دنيا دين و ايمان ولي؟ ۱۳۷
103. په نور څه پسي بې خدايه ژاړې ولي؟
104. ته چه خپله بې عقلي هوښياري بولې

105. هسي ډوب يم ستا د غم په درياب تاللی
106. زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني ۱۳۸
107. که يو ځله توري زلفي کړې پريشانې
108. خدای دي وژغوره له هرې پريشانۍ
109. هر چه کښت ئي په باران و په سيلاب وي ۱۳۹
110. تل دي ستا د خواب آلودو سترګو خواب وي ۱۴۰
111. د هغو چه وبله/(ځ)ځبله مهر و محبت وي
112. د هغې بنا چه نوم محنت آباد وي
113. په دنيا کښي که هر څو و بله پيوند وي ۱۴۱
114. که د درستې دنيا غم مي په سر بار وي
115. له هغو سره به څه فکر د يار وي
116. که د ستا د خاطر مينه په اغيار وي ۱۴۲
117. د وصال په هوا والوتی مرغه شوای
118. چه په مخ باندي د اوښکو يو رقم وي
119. هميشه دي زما سر و ستا قدم وي ۱۴۳
120. ته چه ما ته وائي چه په چا باندي شيدا يې
121. هر چي په حيات صورت له مرګ سره اشنا شي
122. چه پخته شي آشنائي
123. که په قطع د تمام جهان ملک يې ۱۴۵
124. مست د هغه مخ يم چي مستانې لري سترګې
125. خو زما په ورميره ماتول شېږ يې
126. په يوه زره به وری يا به موږ ئې
127. د زړه حال و تاته څه وايم په ژبه ۱۴۶
128. په ځوانۍ کښي بد دماغه بد ګمان يې
129. زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني
130. ورك شه ورك شه بد كردار و بد سړی ۱۴۷
131. که له ډيره غمه دم د چا ختی
132. چه دارو د درد و غم وي هغه می
133. ډيرې خولې زما په ياد شکر خورې شوې
134. بوصلِ تو مارا کجا هاته هې ۱۴۸
135. هغه يار چه ښايسته دی تر آفتابه
136. ستا جفا د حد په هورته ده صنمه ۱۴۹

## ضروري یادونې:

| په غربی لهجه | په شرقي لهجه | په غربی لهجه | په شرقي لهجه |
|---|---|---|---|
| چیرته | چرته | زما | ځما |
| چي | چه | مشک | مښک |
| ځ | ز | که، کړ، کړو | کا |
| سي | شی | ...ي | ...ې |
| شو | شه | لپاره | د پاره |
| کړه، کړي | کا | له... | د... |
| کړو | کړ | اوښکې | اوښې |
| لمبه | لنبه | له... | تر... |
| لمر | نمر | چا له | ځبله |
| ... او ... | ... و ... | لمبه | لنبه |
| | | | |
| **د ځینو لغتونو معنی** | | | |
| ګډون، خبرې | اختلاط | عبث، بې معنی | ابته (حبطه) |
| | | آس، برګ | ابلق |
| | | بېد انجیر | ارهنډ |
| | | جمعه | آدینه |
| | | د څاښت لمونځ، طلوع کول | اشراق |
| | | وریت شوی | الووې |
| | | جادو، ویده، دم شوی | افسون |
| | | پناه غواړم، فریاد | الغیاث |
| | | ټبر، قوم، طایفه | الوس (اولس) |
| | | موخه، هدف | آماج |
| | | پړسوب | آماس |
| | | یوه روحاني مرتبه ده. موري، مېخونه | اوتاد (د اوتد جمع) |
| یو ډول ښځینه پوړنی دی، غالباً په ودو کي په سرکیده | | | اوډنی |
| | | د ورد جمع. دعا ګانې | اوراد |
| | | پتنګ، پروانه | اورپېښتی |
| | | میاشت، ماه | اوږمکه |
| | | خر | اولاق (اولاغ) |
| | | د اوړي د سختې ګرمي موسم | اهاړ |
| | | سزا، پاداش، سرزنش | اهداد (هیداد) |
| | | د شرابو پیاله او کاسه | ایاغ |
| | | شراب | باده |
| | | یو مشهور خوَړ دی | باړه |
| | | ورور | بایې (بهائي) |
| | | بد ذات، بد جنس | بد سګال |
| | | ځوان، زلمی | برنا |
| | | د زمکې مخ، فرش | بساط |
| | | بد/باطل/غلط ویونکی، | بطال |
| | | لېوه، شرمښ | بګاړ (بګیار) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بیچاوڼي (بیچاوڼه) | د عزت جامې، بستره، روجایي | | |
| پارسا | پرهېزګار، زاهِد | | |
| پارخي | د جوار□ کولو دانې | | |
| پاسلل | سپارل | | |
| پایَله | پایزیب | | |
| پخساک | پریشاني، غم او خپګان | | |
| پراته | پرته، بې ځایه، بې مورده | | |
| پسندل | غوره کول | | |
| پکو | په ځان پوري تنګ او سترړی | | |
| پنهم | پنهان، پټ | | |
| پېڅل | زغمل، تحمل کول | | |
| پیچومې (بچوي) | د مچنوغزي پړی (بچوکی). مجازاً اوږدې څڼې او کَوڅ□ | | |
| پیړ□ | د کېناستو تخته، د ناستي کټګی، کټخی | | |
| پېشاب | مِتیازي | | |
| تبرا | بېزارېدل، ټپرا کېدل | | |
| تراړه | تیره، کاڼی، ډبره | | |
| تراهې | وېره | | |
| ترو | نُو | | |
| توسن | نیلی | | |
| تولا | محبت، دوستي، رښتینګلوي، مینه | | |
| تېزل | څغلول، پرې سپرېدل | | |
| ټوکرکی | د پوزي یوه ټوټه یا ټوټک□ | | |
| ټنډ | په زړه موړ، سخت، محکم | | |
| چلیکار | هغه کروندګر چي په ټاکلې برخه، یا مزدوري د چا ځمکه کري | | |
| چندڼ | صندل | | |
| چوړ□ | چوړ□، چواړ□ | | |
| چوک | یو کم شی، لږ څه | | |
| چوګان | نېزه، دډ□، یا توڼا ډنډه | | |
| چووه | عطر، خوشبویه مواد | | |
| حط | ایسته کول، د یو بار کوزول | | |
| خاصا | نېک خویه، وتلی | | |
| خاکروب | جارو کښ | | |
| خټول | خټه لړونکی، ناپاک | | |
| خپسر | خپل ځان | | |
| خدنګ | غشی، خندق | | |
| خراړه | یو ډول دښتي وړه مرغ□ | | |
| خرام | ناز او نِزاکَت(لړونکې تګ) | | |
| خمر | شراب، مُل | | |
| خمسور | همراز، همراه | | |
| څښکو | چشکو یو بوټی چي د لېچنو سترګو دعلاج لپاره پکي اچول کېږي | | |
| څړ□ | د کَپَر□ د سر اورده وېښتان | | |
| څلې څولې | ګنډه ګونډه، زوړ سامان، ګند او کچکول | | |
| ځبله | سره، یو له بله | | |

| دد | ځناور | | |
|---|---|---|---|
| دښن | دښمن | | |
| دراج | تَنځری (یو مرغه دی) | | |
| درای | ړغړغ□، ګونګرو، ژرژر□، جرس | | |
| دلق ارزق فام | زرغون کند، ګودړ□ | | |
| دواب | څاروي، څلوربولي، بوده ګان | | |
| دوڅار | څرګند، ښکاره، ورمخامخ، دچار | | |
| دیبا | وربښمین ښکلی ټوکر، میلک | | |
| ډېر | تباه، ټبر، کهول | | |
| ډلیال | د ډلې ملګری | | |
| راج | راجا (واکمن) | | |
| راح | خوښي، نشاط، مجازاً شراب | | |
| رت□ | ډېر لږ، نا څیز، کم وزنه شی | | |
| رسن | رس□، تناو | | |
| رصاص | قلعي، سرپ | | |
| رعنا | ښکلی او متناسب اندام | | |
| رنځړی | رنځور، ناروغ، علیل، مجازاً زېړ رنګی | | |
| رېمن | خیرن، بد رنګ، ناولی | | |
| زباد | اثبات | | |
| زبر | یاد، په یاد | | |
| زمول | مړاوی، بې سېکه، ضعیف | | |
| زوړ | نشت، نابود، جرام | | |
| زوم | کم، کمی | | |
| زېرمه | تدبیر، ذخیره، پانګه، پاسره | | |
| ژغړ | ژغورلی | | |
| سالکان | زاهدان، عارفان | | |
| ساهو | آزاد، اصیل | | |
| سترغلی | کولک، د سترګو غاټې(کاسه) | | |
| ستور | څاروي | | |
| سخباب | نولی | | |
| سراښ | حریص | | |
| سفال | ټیټ، بې قدره، پستي او بې همتي، کودړی | | |
| سقلات | خپل ځان پټول | | |
| سکه | نُو، ځکه، ګویا، لکه چې | | |
| سمک | کب، ماهی | | |
| سنډاسي | واړدې، کېدل، ملنګ، کېمیا لټوونکی ملنګ | | |
| سولند | حریص، بخیل، ممسک، لکه سولند سپی | | |
| سوها | یو ډول پخوانۍ ټوکر دی | | |
| سپپاري | د تودو سیمو یوه لوړه نر□ ونه | | |
| سیم | یو ګران بیه فلز | | |
| شب داج | توره شپه، د تروږم□ شپه | | |
| شط | سیند، هغه ستر رود چې دریاب ته | | |

| | ګډېري | | |
|---|---|---|---|
| شهاب | ستور، ستوري | | |
| طره | جوغه | | |
| طوق | غاړک□، امېل | | |
| عتاب | قهر او غصه | | |
| عرعر | سپېدار | | |
| غبغب | د چرګ جنجړې، ججوری | | |
| غربال | غلبېل، پرویځي | | |
| غزا وشوه | دا یو شوق دی، نوځه وشول؟(یو تکیه کلام) | | |
| غور | برخه، نصیب، قسمت، مجازاً میراث | | |
| غورځی | په زوره چیغي ایستل، په اتڼ کی ټوپونه او چیغی ایستل | | |
| غوری | سخت انتظار، غورلکی، دچا د راتګ د زېري په انتظار | | |
| غوک | لویه څنګښه (چونګښه)، شلانډه | | |
| غوندی | د وزغنو جوال | | |
| غوږدژبی | فصېح، بلیغ | | |
| فلوس | د فلس جمع، یو ډول میوه | | |
| قرقره | د چرګ تاج، چرګ خولی، تاج، شوغه | | |
| قنج (غنج) | ناز | | |
| کاړ | د وړوکانو ډېر□ | | |
| کام | هدف مرام | | |
| کاواک | ډډ، ګوګ | | |
| کروړ | سخت، محکم | | |
| کړیکه | چیغه، وېروونکی غږ | | |
| کښیده | نقشه، انځور | | |
| کلاب (کلب) | سپی | | |
| کنګال | مفلس، نېستمن، مېنځل شوی | | |
| کوتل | ذبح کول، حلالول، پوستکی ترې ایستل | | |
| کودیکه | یو ډول خاورین دېګ دی | | |
| کوړمه | کورن□، اهل بیت | | |
| کوله | د ساقې د پاسه د ګل برخه | | |
| کوی | چم، کوڅه، مالت | | |
| کهی | ډنګر، لاغر | | |
| ګانده | سبا، راتلونې ورځ | | |
| ګایل | زخمي، ځُور | | |
| ژوبل | زخمي، پرهارژلی | | |
| ګرام | کلی، سیمه، استو ګنځی | | |
| ګروهېدل | عقیده لرل، معتقد کېدل | | |
| ګړیال | زنګ | | |
| ګورهنډه | وړه تیاره کوټه، په غرو کي بانډه ډوله څپر□، مجازاً قبر | | |
| ګونټه | د شطرنج دانه | | |
| ګوهار | د غواوو پاده | | |
| ګوی | پنډوس، پنډوسکه | | |
| ګنګو | زعفران | | |

| ګبدی | ناپوه، بېړا، احمق | | |
|---|---|---|---|
| لارغه | درنګ، ځنډ | | |
| لال | ګونګ، یو ډول انګور دی | | |
| لګام | واګې، قبضه | | |
| لو | لوګې | | |
| لوځېدل | یوه داسې اوړده مبارزه کول چې یوه سیاله ډله هم بریالۍ نشي، خو لاس هم وانخلي | | |
| لوښتل | په کوچ پېل کول، لېږدېدل | | |
| لونل | پاشل | | |
| مال و منال | شته، هستي او دارايي | | |
| ماوا | استوګنځی، مسکن | | |
| متره | نایاب، نشست، زوړ | | |
| مټ | بازو، هاند، همت | | |
| مجذوب | جذب شوی، عاشق شوی | | |
| مجمر | نغری، دېګدانۍ | | |
| مخمور | مست، نشه | | |
| مخنث | نرښځی | | |
| مذمت | بد ویل، غیبت | | |
| مرسته | طلب، لټون، کومک | | |
| مرغچه (مرغچې) | کونجکه، خرموره | | |
| کونجکه | خرموره | | |
| مستدام | همېشه، تل | | |
| مشاطه | ډمه، سینګاروونکې | | |
| مښګیرک | یو مارغه | | |
| مصحف | کتاب، پاڼې چې سره یو شوې وي | | |
| مطر | باران، ورښت | | |
| معتیو (معتوه) | غیر مکلف، لېونی ډوله | | |
| مغاک | ګودال، ژور غالی | | |
| مقراض | بیاتي، قیچي | | |
| منجلاب | خوسا ډنډ | | |
| منزه | پاک، سپېڅلی، پاکیزه | | |
| مواس | چغولګر | | |
| میثاق | ژمنه، وعده، عهد، پیمان | | |
| میزر | پړونی، چادري | | |
| مهوت | پیلبه، پیل والا | | |
| مهینۍ | معاش، تنخوا | | |
| نارون (نارو) | یو ډول دانه چې دچټلو اوبو له څښلو پیدا کیږي اوپه مخ کې یې دتارغوندي چینجي وي | | |
| ناړ | ډنډر، ساقه | | |
| ناغه | د سترګو سره رګونه | | |
| ناوک | غشي | | |
| نخل | د خرما ونه، خجوره | | |
| ندا | غږ، اواز | | |

| ندی | زود، وړوکی سیند | | |
|---|---|---|---|
| نغړول | نغرل، په یوه سا تېرول | | |
| نغوتل | غوږ نیول، د خبرې منل | | |
| نغوته | اشاره، تلقین | | |
| نمري | جامې، لباس، کالي | | |
| نمط | طریقه، نوع، رَوِش، همفکره ډله | | |
| نول | غم، پرېشاني، اندوه | | |
| نومړ | نومول شوی | | |
| وارړ | غوره، وړ | | |
| وبله | یو تر بله | | |
| ورژلی (ورژل) | رېزه رېزه کول، مرل | | |
| وشتې | ټوکي ټکالي، لطیفې | | |
| وقر(وقار) | طاقت، تحمل، درنښت | | |
| ویلاړ | عزم، اراده، نیت او مراد | | |
| هميان□ | هغه تېل□ چي پیسې پکي اېښودل کېږي، کیسه، مضبوطه اراده، په زړه کي یوه خبره غوټه کول | | |
| هوک | نېغ، شخ | | |
| یرغال | بېړه، یرغل، حمله، برید | | |
| یسار | کیڼ، اسان | | |
| یمین | ښی | | |

# رحمان بابا

له ۱۰۴۲ تر ۱۱۱۸هـجري پوري

رحمان بابا د پښتونخوا د پېښور په علاقه په بهادر کلی کی زیږېدلی دي او د پلار نوم ئی عبدالستارؤ ، قوم ئي که څه هم مومند دي مګر د رحمان بابا مقام له دینه ډېر اوچت دي چه دي کومي خاصی قبیلی یا کوم خاص ټبر ته منسوب شي. رحمان بابا هم د ټولو انسانانو دي خو بیا په خاص طور د ټولو پښتنو بابا دي.

رحمان بابا فقه او تصوف له ملا محمد یوسف یوسفزی څخه ولوستل او نور علوم ئي د هغه وخت په هندوستان کي زده کړل. لوی عالم او بزرګ زاهد شو، د پښتنو د لویو او وړو عقیده پرې راغله او ورته بابا وویل.

رحمان بابا په د پیښور په هزار خوانئ کښي اوسیده. د پیښور دمهمندو په بهادر کلي کښي زیږیدلی دی. دی په چشتیه طریقه کښي د خواجه معین الدین چشتي اجمیري لاروی ؤ. ویل کیږي چي ورځیرمه ملایانو کله د کفر فتوی هم پری ایستلی وه.

د رحمان بابا د اشعار د هر چا د ذوق سره برابر مطالب لري. په پښتو کښي به ډېر داسي کم کور پیدا شي چه د رحمان بابا دیوان هلته نه وي. حتي پښتنې مېرمنې د

رحمان بابا له روح څخه استمداد کوي او په اشعارو ئي فال ګوري، دا ځکه چه ده اشعار له هره لوثه پاک او سپېڅلي دي، نه د چا بې ځایه هجو او نه د چا د مبالغې نه ډکه مدح او ستاینه پکي لیدله کیږ ي.
ښاغلي راور ټی او پادری هیوز انګریزی مستشرقین، او اډورن روسی پښتو پيژندونکي، رحمان بابا د پښتو د ادب پيشوا بولي. که څه هم پښتانه د پردیو مستشرقینو قضاوت ته څه اړه نه لري، خو بیا هم له دې څخه، د رحمان بابا ادبي منزلت د پردیو په نظر کښي څرګندیږي.
د رحمان بابا مړی د پښتونخوا پيښور په علاقه د هزار خانې په هديره کښي ښخ دی.

**ديوان:** ډيره زړه او چاپي نسخه ئي هغه نسخه ده چه په ۱۲۹۳ هجري کال د مولوي احمد په تصحيح او اهتمام په لاهور کښي چاپ شوې ده. دوهمه چاپي نسخه هغه ده چه پروفیسر عبدالمجید افغاني یو مختصر تمهید پرې لیکلي دي.. دريمه چاپي نسخه هغه نسخه ده چه پروسږ کال يعني په ۱۹۴۸ عيسوی کال په لاهور کښي چاپ شوي او مولانا عبدالقادر صاحب د پښتو پياوړي ليکونکي پرې يو خورا عالمانه تمهيد ليکلي دي.

# الف

۱

ګوره هسې کردګار دی رب زما — حاجت نه لري د هيچا و يار ته
همګي بزرګواران چه څوك ئي وايئ — څه حاجت دی چه و بل خوا ته ئي غواړم
نه ئي هيڅ حاجت په چا باندي موقوف دی — هيڅ تغيير و تبديل نه لري رحمانه
له نيستئ ئي د هستئ صورت پيدا کړ(و) — چه صاحب د کل اختيار دی رب زما
هم صانع دی د جمله ؤ مصنوعاتو — تر همه ؤ بزرګوار دی رب زما
چه ئي هيچېرې نه مثل نهِ مثال شته — نه د هيچا منت بار دی رب زما
هر تعمير چه د دنيا او د عُقبا دی — هسي رنګ پروردګار دی رب زما
خوانند‌ه د نانويسو صحيفو دی — هم سامع د هر ګفتار دی رب زما
که ظاهر دی که باطن دی که مابين دی — د هغو عطرو عطار دی رب زما
که پيدا که پوشيده دی که اوسط دی — د همه واړو معمار دی رب زما
شريك نه لري په خپلې/خپله پادشاهئ کښي — دانند‌ه د هر اسرار دی رب زما
له همه ؤ خبردار دی رب زما
هسي/هسې نه چه واحدي ئې ده له عجزه — له/په همه ؤ وقوف دار دی رب زما
بې شريکه شهريار دی رب زما

په واحد وجود بسیار دی رب زما
له هغو سره چه یار دی رب زما
په خپل کور کښي همکنار دی رب زما
تل تر تله بر قرار دی رب زما

٢

که صورت د محمد(ص) نه وای پیدا
کل جهان د محمد په (مخ)روئ پیدا شه
نبوت په محمد باندي تمام شه(و)
نور هاله د محمد ۋ پیدا شوی/په جهان کښي
بوی هاله د محمد ۋ په جهان کي
په صورت که/که صورت یې آخرین دی پیدا شوی
خدای یې مه ګڼه بې شکه چه بنده دی
که نبي دی که ولي دی که عاصي دی
چه ئي دین د محمد دی قبول کړی
محمد د ګمراهانو رهنما دی
که رښا ده پیروي د محمد ده
محمد د بیچاره ۋ چاره ګر دی

زه رحمان د محمد د در خاکروب یم
پیدا کړي به خدای نه وه دا دنیا
محمد دی د تمام جهان آبا
نشته پس له محمده انبیاء
چه نه عرش ۋ نه کرسئ وه نه سما
چه بوئ نه ۋ د آدم او د حوا
په معنی کښي اولین دی له/تر/د هر چا
نور ئي کل واړه صفات دي په رښتیا
محمد دی د همه واړو پیشوا
جنتي دی که فاسق دی که پارسا
محمد دی د ړندو د لاس عصا
ګڼه نشته په جهان بله رڼآ
محمد دی هر دردمند لره دوا
که مي خدای نه کا له دې دره جُدا

٣

ترو په ماته خوله به څه کوی/څه رنګ کړې ثنا
تا ته وايي که پوهيږې په وينا
هم عاقل يې‌هم بالغ يې هم دانا
چه په دا کښي دي بهبود دی که په دا
ډير په پورته پورته مه ځه سرهوا
ته په اصل کښي له زمکې يې پيدا
چه ته زوی يې يا نمسی د فلانا
په ښيګڼه د ادې او د بابا

څوك بې/يې څه کاندي/کوي ښايست د مور ونيا
دلګير مه شه که مي نوم واخيست دا ستا
نه مي کار نه مي غرض شته په بل/نور چا
دا عيبونه دي همه واړه زما
ما به څه لره کوله دا انشاء
اې رحمانه ولي نه مرې لا پخوا

۴ مه درومه رحمانه په خلاف د دانايانو
هيڅ ثابته نه کړه چا د دې دنيا وفا
هر څوک چه دعوی په دا دنيا کا د خپلو واړه مينې کاندي بېهوده په دا دنيا
دا فلک کلال دی سازول او ماتول کا واړه باطل وايي دنيا نه ده د هيچا
هر سنگ و کلوخ چه څرگنديږي د دې دهر ډېرئي ما و تا غوندي پيدا کړه هم فنا
دام دي هيڅوک نه بردي د دنيا و رهگذر واړه ککر دي څوک د شاه څوک د گدا
ته ښکار به وکړی نه شي د سيمرغ او دعنقا
هر څوک چه له دې فانی نفس وابستگي نه به شي تړلی په زنځير سره هوا
کا گل که هميشه وي هسې نه تر ابدا
ماه دی که آفتاب دی عاقبت واړه خراب مينه د دنيا پسندلې نه ده هيڅ دانا
دي
۵
چي دوې ښځې وي د چا هم سُني وي هم پارسا
خدمت کړونې د څښتن وي په ښه خوي وي اراستا
تفاوت په کي حرام دی که شري وي که خاصا
لازم دادی و څښتن ته تفاوت دي نه کا بيا
په خوراک هم په پوښاک کي که کنه/کنه وي که حدوا
او که دا هسي به نه کا خپل عمل به کا بيديا
يو دلې به مجنون ومري بل هورې به شي روی سيا
دا حديث دی وارد شوی که څوک فهم کا په دا
هغه څوک چي تفاوت کا زه ويزار يم دی له ما
په مشکات کي دي راغلي ورشه وپوښته علما
رحمان ژغورې يوه خدايه له عذابه له خطا
۶
ښه ده ښه ده دا دنيا چه توښه ده د عقبا
مذمت د دنيا مه کړه واوره پند کړه دا وينا
د دنيا په بازار کيږي د هغه جهان سودا
په دنيا کښي ډېرحکمت دی پرې پوهيږي حکما
که غليم لره ئې ورکړې غليم دوست کا په هوا
که تر سر ئې صدقه کړې رفع دفع کړي بلا
که په اور باندي ئي کيږدې بوي د عودو (کا)کړي پيدا
که ئې توی کړې په صحرا کښي/تويه په صحرا کړې ښايسته کاندي صحرا
که ئې نذر کړې و پير ته خوشحال درومي په خندا
څو ژوندی وي په دنيا/جهان کي يادوي دي په دعا
د حاتم په څير دي ستائي خطاب در(کا)کړي د سخا
سخی هر يو دوست د خدای دی وَلو کانَ فَاسِقَآ
هر بخيل د خدای دښمن دی ولو کانَ زاهِدآ
دنيا کښت د آخرت دی دا خبره ده رښتيا
د دنيا طالبان ډېر دي که ئې مومي څوک له چا

ولی مرد په کښي/پکښې هغه دی چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښي بدي نسته که بدي نه وي له تا
په دنیا کښي خطا نشته که له تا نه وي خطا
دنیا بحر دی بهیرږي آئینه/ې غوندي صفا
خپل خپل مخ په کښي/پکښې لیده شي که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر په کښي/پکښې د سر سته هم ګوهر دی بې بها
وفا دار لره وفا شوه جفا کار لره جفا
له یوه مخه ئې درد وي له بل مخه ئې دوا/جفا
چېرته خوند کاندي د زهرو چېرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دی د سړي په مدعا
سالکان دي نندارچي شي دخپل ځان په تماشا
هرچه/چي کا هغه به مومي دنیا ځای دی د جزا
لکه وي هسې به پاځي که نادان وي که دانا
که دانا ئې ویوهیږه په روا په ناروا
فتویَ ونیسه په مخ کي پسې مټ کړه په تقوا
دنیا نه ده واړه/هغه دین دی چه له نهې وي سېوا
و طاعت وته ولاړ وي همیشه تړلې ملا
له حرامو ئې پرهیز وي مشغول وي/هم مشغول په پنج بنا
کلمه ئې وي قبوله هم په جهر په/هم اِخفا
د دنیا د کار لپاره فرض لمونځ نه کاندي قضا
هم صائم د رمضان وي هم زکات کاندي ادا
که ئې توان د حج رسیږي حج هم وکړي پسې بیا
دا پنځه بنا ددین دي چه بیان ئې (اوکړو)وکړ ما
چه ئې یون په دا طریق وي هغه کس دی اولیآ
که ئې مال ددنیا ډیر دی/وي هیڅ دي نه کاندي پروا
دنیا بده د هغو ده چه ئې کسب وي ریا
یا ئې کسب د ریا وي یا یې وګټي په غلا
یا یې ټوله کا په ظلم یا د خمرو په سودا
یائي ورکا په شرابو یا ئې ورکا په زنا
یا ناحق خونونه کاندي یا مالونه خوري د چا
عبادت (که)کا په ځان فرض د پادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا په سبب د روي ریا
نه ئې ویره و/شي له خدایه نه ئې شرم نه حیا
د یوې ګېډې دپاره هزار خونې کا بیدیا
همیشه ئې له ستمه واړه خلق وي په غوغا
ګوش وهوش ئې هرګز نه وي د مظلومو په ژړا
د فرعون په خیر به ناست وي بی پروا و کبریا
بتخانې وته ئې مخ وي و مسجد وته ئې شا
اختلاط کا (د)له بدانو له نېکانو وي سوا/جدا

هيڅ يې نه وي په خاطر کښي تولاْ و تبراْ
و رحمان ته پيښه مه کړې/ه خدايه هسي رنګ بلا!

۷

نه چه غوږ کاندي په بد وئيل شنوا
خدای دي بد سړی در نه ولي په خوا
که له چا سره همدم وي اژدها
سهل کار دی سود او زيان ددې دنيا
خدای دي نه کا څوک په سهل کار رسوا
حاصل مه شه هغه خپله مدعا
په کار نه ده هميشه خپله رضا
خواږه نه دي هغه زهر دي ګويا
دغه هسي چاري نه کاندی دانا
لکه ستا دی هسي ځان دی د هر چا
نه چه نغوته کا د حرص و د هوا
هسي نه چه واړه وګڼي روا
څوک فکرونه د صواب (دي) څوک خطا
څه نسبت دی د خطا او د عطا
څوک اعلی/عالي دی څوک اوسط دي
څوک ادنا
نه چه مومي نفر ځای د امرا

زه رحمان له چا شکوه شکایت نه کړم نشته بل دوست و دښمن زما
بې تا
هيڅ مي په کار نه دي رحمان تا غواړم
٨

ته چه ما ته وايې چه په څه کوې ژړا دلبره
ته جور و جفا کړې زه ژړا کوم دلبره
څه ښادي به کاندي طائفه د عاشقانو نه در معلوميږي دغه خپل جور و جفا
دا خصلت چه ستا دی که هم تل په دغه ستا که دغه نه وای/وي دا به هم نه
شان وي وای/وي زما
يو د ستا ماښې شه بل غورځی/غرور د رسم د بتانو که هم دا وي لکه ستا
رقيبانو نه را معلوميږي د دردمندو زړو دوا
هر چه عاشقي کا که په قطع افلاطون وار په وار مي وژني کله هغه کله دا
وي زه خو ئی مجنون گڼم که نن وي که سبا
سپی هم په عذاب د وژلو نه دی د جدای زه خو گوندي ستا د کوڅې سپی شوم په
وينا
دا زما رضا ده باقي هرچې/څه ستا رضا

٩

عالمان دي رو ښنائي د دې دنيا عالمان دي د تمام جهان پيشوا
که څوک لار غواړي وخدای هم و رسول عالمان دي د دې لارې رهنما
(ته) همدمي د عالمانو ده کيميا
کيميا گر که د کيميا په طلب گرزی که څوک کاښی وي که/يا لوټه د صحرا
په مجلس د عالمانو به سره زر شي عالمان دي په مثال د مسيحا
جاهلان دي په مثال د مردگانو عالمان دي واړه هسي اوليا
چه مرده ئي له نفسه ژوندی کيږي سړی نه دی خالي نقش دی گويا
هر سړی چه رتبه نه لري د علم که اعلی دی که اوسط دی که ادنا
زه رحمان حلقه بگوش د هر عالِم يم

١٠

که خپل زړه غواړې له چا ځان صياد کړه د عنقا
د حباب کلاه په سر کړه سپور په آس شه د هوا
لکه خضر هسي پا څه اوبه وڅښه د بقا
له زمينه قدم کيږده په آسمان لکه عيسی/عيسا
د هغه استاد شاگرد شه چه در و ښيی کيميا
دا چه ما درته بيان کړ ه که حاصل کړې واړه دا
هاله طمع کړ ه رحمانه له خوبانو د وفا

چه نه شان لري نه شکل
بې وفا ده بې بقا
لکه لوټه د صحرا
په یوه ګړ ئي شا
په یوه ګړ زما
په یوه ګړ دوا
خدای څوک پیښ مه کړه رحمانه
۱۲
په ښاد ښاد شوی نه یم د هیچا
که زه طمع توقع له بله نه کړم
که مي ورور که مي عزیز که مي فرزند/یار دي
په هرکورکي رنځوران راته پراته دي/زګېروی کا
د دنیا خبرې واړه په دنیا شي
که په کلي کښي مي کور دی زه ګمان کړم
چه څه کار پرې نه پوره وي نه نیمګړی
چه ئي ښه توښه و بله سره نشی
په توده زمکه استوګنه ده مشکله
بادشاهی لري هر یو غلام د ستا
پخته کله وي/دی چه لاف د پخت ګ کا
خو هم هُمره ئي نظر په ننګ و نام وي
همیشه به له مقامه بې مقام وي
چه/څو په خپلو وینو ګل غوندي غرق نه شي/وي
صبح و شام په هغو خلقو باندي یو وي
بل کلام ئي په زړه کله اثر کاندي
فراموش کاندي همه نوري مست
دام د ستا د تورو زلفو عالم ګیر دی
زه رحمان دعا سلام په هغو وایم
۱۴

په یوه ګړ رجا
په ساعت کی ئي فنا
په ساعت کي ئي غوغا
په ساعت کي ئي ژړا
په ساعت کي ئي جفا
په ساعت کي ئي غِنا
کله دا شي کله دا
په دا هسي رنګ بلا
۱۳
تور ټپ شوی یم په غم د هر آشنا
د بل طمع توقع کیږي له ما
واړه غواړي خپله خپله مدعا
لاس مي نه رسي د هیچا په دوا
ما به څه کا څوک چه نه لرم دنیا
چه کور نه دی دا مي ګور دی په صحرا
څوک به څه کا له هغو سره خندا
تر هغه آشنا بهتر دی نا آشنا
څه به زیست شي له رحمان سره د چا
د خاصانو په ځای ناست وي عام د ستا
پختګان دي په دې خم کښي خام د ستا
چا چه نه وي اوریدلی نام د ستا
هغه څوک چه لټوي مقام د ستا
وبه نهویني رخسار ګلفام د ستا
چه آرزو لري هر صبح و شام د ستا
چه تر غوږ ئي شي شیرین کلام د ستا
هر چه/چي نوش کاندي باده په جام د ستا
تنها نه یم ښتی زه په دام د ستا
هر چه ما لره راوړي سلام د ستا

گل لنبه/لمبه شه/شو د بلبل په آه رحمانه!
مخ ئي کوړ وي همیشه په سوی د ستا
چه يې تیر شي تر دماغه بوی د ستا
چه په دا رنگه قامت دی لوی د ستا
خدای و ما وته بوستان کړ کوی د ستا
چه خوله بیرته شي په گفت و گوی د ستا

۱۵

خوی که په دا شان وي دل آزار ستا
حیف چه اوریده شي لیدی نه شي
بیا دوباره نه گوري و بل ته
خدای زده چه ته یار د کوم یوه ئي
ځای د پښوایښودو مونده نه شي
بل به هسي نه وي که خدای کاندي
بل گمان په ما باندي ومه کړه
عشق له حسنه حسن دی له عشقه
ته زما مطلوب يې زه طالب یم
ته که تازه گل د نو بهار يې

چه یادیږي مي قامت دلجوی د ستا
و هغه/هغو ته چه څرگند شي خوی د ستا
چه ئي نقش وي په زړه ابروی د ستا
لیونیو لره بس وي/دی موی د ستا
چه و زړه وته پرې باسي روئ د ستا
تلوني نه دي له ما جست و جوی د ستا
نه گروهیږي یار په های و هوی د ستا
جور دی که جفا ده که ستم دی
جور و جفا څوک په بها پلوري
یو تار که ضایع شي ستا د زلفو
سل ازمیښتونه دي را وکړه
تیر یم زه رحمان له هره کاره

څه ښادي به کاندي طلبگار ستا
حسن و لطافت دی پرېوار ستا
هر چا چه لیدلی وی رخسار ستا
هر طرف یاران دي صد هزار ستا
همره عاشقان دي په دربار ستا
ما غوندي خاکسار و هوادار ستا
عمر واړه زه او انتظار ستا
ته نگار زما يې زه نگار ستا
ته زما طبیب يې زه بیمار ستا
زه یم عندلیب په لاله زار ستا
واړه مې منلي دي یک بار ستا
زه یم د جورونو خریدار ستا
ځان به صدقه کړم تر هر تار ستا
حیف دی چه لا نه شي اعتبار ستا
اوس مي ملا تړلې ده په کار ستا

ستا په عشق کښي هسي خوار و زار دی دا

۱۷

چه له تا سره په سر کاندي سودا

نه به ما غوندي شيدا وي په جهان کښي
بل به نه وی هسي ما غوندی شيدا

ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړي
نه به تا غوندي دلبر شي بل پيدا

بې د ستا له مخه کون دی که مکان دی
ولي نشي د ژړا په ځای خندا

جدائي به دي هيڅ رنګ قبوله نه کړم
ښه توښه مي نه په دا شي نه په دا

لکه ورستو مقتديان وړاندي امام وي
څو مي نه دی روح کالبوت سره جدا

زه يې وينم/يو نه يم درست جهان په تا مين دی
ما په تا پسې ده کړې اقتدا

که بادشاه دی ددې دهر که ګدا

کاشکې خط د اماني و ما له را کړې
چه له ما سره وعده کړې د فردا

زه پخپله په تا نه يم مين شوی
ستا له لورې په ما شوې ده ندا

زه په تا باندي مين يم له ازله
نه چه کړې مې نن ورځ ده ابتدا

چه د ستا د عاشق په تبغ شهيد شي
د رحمان غاړه به هاله شي ادا

د رحمان و زيړي رنګ وته نظر کړه
چه مدام په تا پسې کاندي ژړا

۱۸

هسی نه چه زما يار واړه جفا کا
صد چندان لکه جفا همره وفا کا

لکه زه چه په خپل يار باندي مئين يم
يو په سله همره مينه يار په ما کا

زړه ئي وړی په احسان دی نه په جور
مجنون ځکه په ليلی پسي ژړا کا

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دی
نه يوازي دغه ناز په ما و تا کا

نه به ګوري رحمان څه شکل هغه مخ ته
فرښتې چه ئي د حسن تماشا کا

زه ګمان کړم چه همه زما ثنا کا زمانه مي په جهان باندي رسوا کا
چه روغ خلق په رنځور پوري خندا کا چه ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کا
په روښانه ورځ به څه رنګه څوک غلا کا که دلبر د ديدن مي پياپی را کا
ما عاجز لره د ګل په ځای خار را کا

۲۱

هغه ژوی چه مين وي څه به خوب کاچه مجنون غوندي کړمن/فرهاد غوندي کوهکن وي څه به خوب کا
هر نفس د سړي تله دي له جهانه چه ئي هر نفس رفتن وي څه به خوب کا
چه سبا له خپله ياره جدا کېږي که د سلو شپو کړمن وي څه به خوب کا
عاشقي ده خدای له اوره پيدا کړې چه په اور کښي ئي وطن وي څه به خوب کا
د اوبو تږی هم خوب کولی نه شي څوک چي تږی دديدن وي څه به خوب کا
د رقيب له جوره خوب د عاشق نه شي د هغو چه ديو د ښمن وي څه به خوب کا
د مجاز بندي خو خوب کولی نشي چي يې زلفې طوق رسن وي څه به خوب کا
خوب خندا له بې غم شي/کيږي رحمانه څوک چي/هر چه تا په خير/غوندي غمجن وي څه به خوب کا

۲۲

چه په خوا ئي هسي لار وي څه به خوب کا          چي خوړلی تور ښامار وي څه به خوب کا
چه بنده او خدمتګار وي څه به خوب کا
هر چه غوڅ په ذوالفقار وي څه به خوب کا

۲۳

هغه ژوی/ي چه بې  خدایه محبت کا          ۲۴
محبت بې خدایه واړه د زړه رنځ دی          همګي واړه بې ځایه محبت کا
خرخاري ده چه ئي یو ځبله/له بله  کاندي          که مدام له چنګ و نایه محبت کا
نتیجه ئي ریش کنده جامه پاره وي          هر خودرای چه له خودرایه محبت کا
هغه سرای لره به تله ور باندي ګران وي          آدم زاد چه له چارپایه محبت کا
بوالهوس/بلهوس به نه پتنګ نه پروانه شی          هر سړی چه له  دې سرایه محبت کا
د مګس په څیر له ورایه محبت کا
چه  د تورو زلفو سیوری په چا وشي          هغه کله له همایه محبت کا
رحمان  ځکه د رېبار متابعت کا/کړم          چه رهروله رهنمایه محبت کا
اورنګ زیب چه آرایش د تخت و تاج کا          تخت و تاج به ئي مرګی تاخت و تاراج کا
به جهان کښي به ئي پاتي ښه بد نوم شي          دی که چارې د کسرى او/که د حجاج کا
څوک به څه ښکله ژوندون په دا مزاج کا
اوبه  سترګو  لره لاړې اور د زړه شه/و          لکه باز چه په تارو او په دراج کا
جدائي   زما په زړه کا هسي چاري          لکه اور یې/چه له کبابه نم اخراج کا
زما اوښکې چه  پیدا د زړه له یم/زیم شوې          که نور خلق  های و هوئ/هوی وهای ته احتیاج کا
زه غمجن د عید په جشن خبر نه شوم          زمانه د رحمان زړه ورته آماج کا
هر ناوک چه د قضا له شسته خیژي

۲۵

د بې دردو همدمي به دي بې درد  کا          کنګونمري هم په څیر د ګنګو زرد کا
صحبت  بې تاثیره  نه دی دا حدیث دی          هغه زمکه ئي له جنسه د خپل ګرد کا
هر کالی چه څوک په زمکه باندي کېږدي          که صحیح و/که سلامت وي آه (یې) سرد کا
په مجلس د ویرژړلیو څوک ور مه شه
چه دویي له میانه لري شي رحمانه          معشوقه/قې عاشق پخپله ناز پرورد کا
د نامردو همدمي به دي نامرد کا

۲۶

که په ګنج د شاهي فخر شهريار کا | عاشقان ئي د دلبرو په رخسار کا
خرقه پوشو په خرقه کښي دی موندلی | هغه حظ چه په دنيا کښي دنيا دار کا
پتنګانو لره ورکړ خدای په اور کښي! | هغه عيش چه ئي بلبله په ګلزار کا
نيک ساعت په بد بدل د هيچا مه شه | په وصال کيغم دهجر وردوخار کا
نس د ګور او دمور يو دی په معنی کښي | خو په چا ئي تور لحد په چا بازار کا
د بېړ په ډوبيدو چه رب/خدای راضي شي | يګانګي/بيا ملاح د زړونو کله هلته کار کا
| مشقت د مشاطې واړه مردار کا
هغه مخ چه مادر زاد ښايسته نه وي | چه فلک د عاشقانو بخت بيدار کا
يار د ناز له خوبه پاځي پسې ګرزي | لکه شمع چي څوک بله په مزار کا
بې له تانه مدام سوزي داېې حال دی | لکه شمع چه څوک بله په مزار کا
نيمي شپې ئي يار تر سره پوري کښيني | په هرچا کي چه څه وي هغه/هسي رفتار کا
د مست د هو ښيار يون څرګند وي |
د بلبلو نغمه زاغ کولای نه شي | هر سرود آواز په طور د خپل تار کا
رحمان هسې بې وقوف سوداګر نه دی | چه د دين متاع بدله په دينار کا

۲۷

هر ګفتار هره ويناچي څوک عبس کا | تر عبس ويل دا به ده چي يې بس کا
په هغې وينا چي وروسته پښېمانېږي | له اوله دي خوله هسکه (له نفس) کا
هره چار چي له اختياره وي وتلې کا | بېهوده به يې څوک لاف د دست ورس
فقيري د خدای په مهر مونده کيږي | دا هنر په کبر نه شي چي يې نس کا
آدم زاد په معنی واړه يو وجود دی کا | يو وجود دی هم يې پاک هم يې نجس
که يې اصل يو وجود دی (په دې) څه شو | دګلونو هنر کله خارو خس کا
په اخلاص د نماز ګذارو دی جنوب دی کا | هر نماز يې چي (په) ريا تيمم اودس
معتقد له اعتقاده مقصود بيا موند وسوس کا | د هغو طاعت غلط دی چي
که خود بين وي ته يې څه کوې رحمانه | د خود بينو سزا خپله خودي بس کا

۲۸

دلربا که د خپل حسن مخ عيان کا | ډېر بې غمه جمع زړونه به لړزان کا
په کشور د صابرانو به قيامت شي | اسرافيل غوندي آواز به هر نالان کا
چي يې چا جام د لعلو وي نوشلی | پېمانه چغلګيري په دا نادان کا
د جبين په چين يې هسي رنګ پوهيږم | چي محراب به د ګايلو زړونه وران کا
د پرېشان ګيسو دليل يې عين دادی کا | چي وابست زړونه په دا رنګ پرېشان
که جلوه يې د جمال شي معينه کا | په شعله به لمر، سپوږم سوي نانان
که د باد ګذر(يې) وشي و خاکپای ته | د ړندو سترګو دارو به خدای اسان کا
که شانه په تورو زلفو باندي کيږدي | مشک عنبر (به) د يوې بيسې ډېران کا

توري زلفي يې هم مښک دی هم عنبر دی    خو زما له کم بخت (يې) خدای ماران کا
که پلو له مخه ليري که رحمانه    په ديدن به هندوان واړه مسلمان کا

۲۹
زما اوښکې چه دا هسي شست و شو کا    دا محنت واړه زما د مخ په ولو/آبرو کا
تل ئي مخ وي تر خوبانو پوري والی    عاشقي چه د چا اوښکې په شيبو کا
د عاشق د سينې چاک به ور ځرګند شي    که څوک سر و خپل ګريوان وته فرو کا
د عشق اور چه شمع خود په سر قبول کړي    پروانه به څه حجت د ځان په سوو کا
ګل څه نه وايي چه غرق په وينو ناست وي    بلبل څه لره بې ځايه ګفتګو کا
ز ه که مرګ غواړم بې ياره ګرم خو نه يم    جدائي سړی په ځان پوري پهکو کا
مګر خدای ئي په رحمان باندي پېرزو کا
معشوقې په محنت نه دي چا موندلې
۳۰
ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کا    چه قضا شي ور دوځاره حکما څه کا
مور و پلار خو نيک فرزند له خدايه غواړي    چه بد بخت شي ادې څه کا بابا څه کا
چه لاس نه رسي يار څه کا آشنا څه کا
يار له ياره په لوی لاس کله بېلېږي    چه خدای نه کا ښيرې څه کا دعا څه کا
په ښيرو په دعاڅه شي کړونی خدای دی    په دا کار کښې ناتوان څه کا توانا څه کا
بخت په زور و په زر نه دی چا خپل کړی    نور د شمعې خندا څه کا ژړا څه کا
ای رحمانه پتنګ عذر/ولي (شؤ)شه چه و(سو)سه
۳۱
څو يو ځله ئي تاراج په جفا نه کا    يار له ياره سره مهر و وفا نه کا
که ئي سر په بوسه ورکړم زه پوهيږم    چه قبول به دغه عجز زما نه کا
چه په خپله رضا تللي مادر زاد وي    هغه هيچري د نورو رضا نه کا
څو ئي خپله مدعا حاصله نه شي/وي    مهرويان په خوله د خضر سودا نه کا
که ئي سل ځله دعا کوم په عمر    ګوش و هوش د دعاګوی په دعا نه کا
که آهونه آتشين پسې وکاږم    لکه سروه له خزانه پروا نه کا
که آرام غواړي رحمان په عاشق کښې    دغه/دا خو واړه ناروا کا ناروا نه کا
۳۲

چا چه سر دی په سجده ویار ته ایښی    ترکي ځکه و هیچا ته سلام نه کا
چه ئي کږه ده یار په لوري لوښتې    ځکه زرکه و چمن ته خرام نه کا
نشستن د عاشق نشته لکه شمعه    دوباره له دې سجوده قیام نه کا
چه محظوظ وي په تش بوي د مهرويانو    لکه بحر هسي درومي مقام نه کا
چه لذت ئی د سرو شنډو وي موندلی    څو صورت د عشق په اور کښي تمام نه کا
په هغو د لعلو لبو می حرام دی
رحمان هسې و خپل یار ته بې حجت دی    هغه فکر د بوسې د پیغام نه کا
نوره مینه د شرابو په جام نه کا
کامراني را څخه غواړي ناکام نه کا    څو دا نور لذت په خپل سر/خپسر حرام
د کوم آس په خوله کښي دخل لگام نه کا نه کا
سالک ځکه قصد د قصر و د بام نه کا    لکه عذر چه صاحب ته غلام نه کا
زمانه رضا د هیچا مدام نه کا

۳۳

په پیر□ کي د ځوانیه خیال دی هسي
بې درگاهه ئي بل ځای د رحمان نشته
لکه کرښه په اوبو هسي نشان کا
په نابود باندي ناحق د بود گمان کا
چه امید په عمارت د د ې جهان کا    لکه اوړکی دُر بدل په پارچه نان کا
د اوبو په مخ د کرښې بقا نشته    اور اوبو سره استوگنه په څه شان کا
نادانانو هسي دین په دنیا بایلود    کار د سترگو به څوک څنگه په دهان کا
د دنیا و دین نسبت وبلته نه شي    هسي دین و دنیا حکم ځان په ځان کا
عشق د نفس له خاصیته منزه دی    لکه څوک چه د باغ سیر په خزان کا
لکه چشم و گوش په کار کي وبله بیل وي/دي    په سفر استوگنه څو مسافران کا

۳۴

عاشقان د ناصحانو وینا نه کا    مست هاتي د مهوتا نو پروا نه کا
واړه جور د دې دهر/دور مي قبول دی    که خدای ما له خپله یاره جدا نه کا
چه د گلو پریشان□ شوه ور څرگنده    غُنچې سر په زانو کښېښود خندا نه کا
و سیلاب ته د ډنډوکي څه اِستاد وی    زړه چه ژاړي سترگې څه رنگ ژړا نه کا
دنیا کل په احمقانو ده ودانه    دانا ځکه وابستگي د دنیا نه کا
چه ئي زړه دی/وي په هوا پوري تړلی    د حباب عمارت ځکه بقا نه کا
بې هنر دی چه څوک دین په دنیا پلوري    هنرمند سړی دا هسي سودا نه کا
که څوک وائي هوښیار کوم دی وایه دادی    چه بې خدایه نوره مینه په چا نه کا
گدائي که وریېښیري دا بی ځای دی    هر بادشاه چه دلجوئي د گدا نه کا
چه بیدل ئي په یوه نگاه رغیږي    څه انصاف دی چه دلبر ئي دوا نه کا
هر چه زړه ئي وي په یار باندي بایلودی    نوره مینه په چا بې له آشنا نه کا
چه تر غوږ ئي وي وینا د آشنا شوې    هغه غوږ هر گز په نوره وینا نه کا
و به نه رسي د یار تر بلند بامه    چه د زړه غولی روښن په ژړا نه کا
زه رحمان د هغه یار په جفا/ژړا خوښ یم    که اغیار مي خدای له میانه پیدا نه کا

۳۵

که سړی د خپلې پوهې تقصیر نه کا
د خدای کړه به څوک په پوهه تغییر نه کا

خواه مخواه به د تقدیر شوي ور پیښ شي
که څوک هیچري نظر په تقدیر نه کا

د هغو چه بخت بیدار شو غم ئي نشته
که هیچري بیداري و شبګیر نه کا

دا له خپلې کم فهم موږه/فهمیه موږ څه وایو
چه فلانی سړی تلاش و تدبیر نه کا

دلګیري او خوشحالي که په خپل لاس وي/وای
په خپل لاس به خپلسر/خپسر هیڅوک دلګیر نه کا

معرفت د خدای څرګند دی په هر څه کښي
سترګي وخوره چه څوک همره نظیر نه کا

دا نفس په مثال برق صورت فانوس دی
برق به هیڅوک په فانوس کښي اسیر نه کا

د دنیا سړي همه واړه درماند دي
کوم بادشاه دی چه منت د وزیر نه کا

کوم واده کومه کوژدن ده په جهان کښي
چه فلک ئي و آخر وته په ویر نه کا

په خوله هر یو سړی اسم د پیر اخلي
باري څه پکار چه نغوته د پیر نه کا

دغه ښې د قیامت نه دي نور څه دي
چه د پلار ویل په زویو تاثیر نه کا

هسي چارې له ناصحو واقع کېږي
چه له شرمه ئي هیڅ غل وکاسیر نه کا

په مرده پسې تکبیر وکا روان شي
څوک ګمان په ځان د هسي تکبیر نه کا

په دنیا پسې درست عمر زهیریږي
ځان یو دم د خدای دپاره زهیر نه کا

دعیال دپاره تیر تر سر و مال شي
دل جوئي په یوه ټوک د فقیر نه کا

رحمان ګرم دی چه نارې د هجران اوري
و آشنا وته کاته په ځیر ځیر نه کا

۳۴

تر حده تېره/ډېره شوه په یار پسې ژړا زما
نه ګروهیږي په ژړا سره آشنا زما

که مي هره وینا دُر یا مرغلر شي
لا دغوږ لایقه نه ګڼي وینا زما

په نارو به ما بیدار کړ که اوده وی
باري ویښ راته اوده شو دلربا زما

زه مکتوب غوندي په پټه خوله ګویا یم
خاموشي زما تېری کا تر غوغا زما

کښت د عشق په توده ځمکه آسان نه دی
سمندر بویه چي زیست کا په صحرا زما

دا یار نه دی چي هجران له مانه بېل کړ
روح زما دی چي له تنه دی جدا

زه رحمان بې خپله یاره هېڅ نه غواړم
که قبوله وي د خدای په در دعا زما

بې له تا چه نه اخلې یو دم خبر زما
نور اندوه به څه وي تر دغه بتر زما

څه چل دی چه نه شي ستا په زړه اثر زما
چیرې دی دلبره بې تا بل دلبر زما

۳۸

هسي یاد یې همیشه مدام زما
هر کلام چه بې دا ستا له یاده وکړم
بې له تا که زړه آرام کړم په سل رنګه
ننګ و نام که ستا په مینه له ما درومي
چه قایم شوم په مقام د عاشق
څو د عشق په خُمخانه مې/ئي داخل نه کړ/کړم
نن دي وقت دی که مي آه و فریاد اورې
هزار جام و صراحي دې فلک مات کړه
زه رحمان به دا ناکام کوم تر کومه
چه هر چا لیدلی نه وي یار زما
هر هغه چه وي دلبر زما لیدلی
سر زما درګاه د هغه یار عزیز وي
ما بې‌عشقه بل څه خیز نه دي زده کړي
خدای دي هیڅوک یو ځبله/له بله آزار نه کا
یاره ستا په جدای او په ډیرغم کښي
لوی دی که هلک دی همه واړه ستا خبري کاندي

۳۹

چه اوراد یې په هر صبح و شام زما
سل توبې دي په هغه کلام زما
نه شي نه شي په هیڅ رنګ آرام زما
زار شه ستا تر میني ننګ و نام زما
هیر شو دلته واړه بل مقام زما
پخته نه شو/دی دغه عقل خام زما
څو چه خاورې نه دی هر اندام زما
څو به ګرزي په دا دور جام زما
وایه کله به حاصل کړې/شي کام زما
زه رحمان به لاف په عشق کي څه وهمه
خیر دی دا که وایی بد په کار زما
نه به کا انشاءالله انکار زما
بې له دې لار/نه نشته بله لار زما
چه څه دی هم دا دی واړه کار زما
ای دلبره مه اخله ته آزار زما
سیند د اوښکو درومي په رخسار زما
بل ګفت وګوی نشته په دیار زما
خود به ځان څرګند کا انتظار زما

۴۰

تېر شو په دا طمع په درستا عمر زما
ګوندي چیري کیږدي یو قدم په سر زما
تا وې چي د عشق پیاله خوره ده تر شکرو
وسو په هجران کي دې پیالې ځیګر زما
سل جفا که ووینم په سترګو ستا له لاسه
ستا په جفا نه کیږي هرګز باور زما
یا له ما رحمان سره جفا مه کړه دلبره
یا بې تا راوښیه یو بل دلبر زما

۴۱

زړه زما چشمان زما بې تا هيڅ حال نه لري | ستا رخسار و زلفی دی ګل زما ريحان زما
دا پيران شيخان زما ستا په غم کښي نه رسي | ستا په غم کښي نه رسي فکر زما توان زما
باغ زما بوستان زما بې تا ميوه نه نيسي | هيڅ په تا اثر نه کا آه زما افغان زما
وصل هم هجران زما اې رحمانه خير دی | بې تا هيڅ حال نه لري زړه زما چشمان زما
ځار شه تر جانان زما سر زما سامان زما | ستا په غم کښي نه رسي دا پيران شيخان زما
واړه د يار هجر دی زيار زما نقصان زما | بې تا ميوه نه نيسي باغ زما بوستان زما
ستا د کوځې خاورې دي مښک زما زعفران زما | اې رحمانه خير دی وصل هم هجران زما

۴۲

ستا په خير نه دي خوبان ليدلي ما | نه په غورو چيرې اوريدلي ما
هيڅ وفا له عاشقانو سره نه کا | دلبران دي واړه ازمايلي ما
چه مي ستا و ښکلي مخ ته دي کتلي | بل يو مخ ته نه دي بيا کتلي ما
د زړه غولی مي نيولی ستا غمونو | نور غمونه دي له زړه ويستلي ما
چه مي کار د عاشق په لاس کښي واخيست | دي له بله کاره لاس وکښلي ما
نور غمونه مي له زړه نه دي وتلي | ستا غمونه په کښي دي کرلي ما
که جفا کوې که جور واړه ځای لري | د ستا جور وجفا واړه دي منلي ما
زه رحمان بې ياره خوب و خندا نه کړم | بې ده نه دي خوب خندا پسندلي ما

تر ابده به يې برخه ملالي وي | له هغو چي زړه ملال شي د اشنا
څو به جفا کړې نه پوهېږم څه بلا شوه بلا | څو به وي تر کومه دا جفا او دا
که يې مال د دنيا ډېر وي | هيڅ بري نه کاندي پروا

۴۳

چه واده ئي کا په ډول او په سرنا | بيا پرې وايي زمانه د وير وينا
که مي هر څو دلبري او دلجوئي کا | زه پوهيږم د خپل يار په استغنا
په يوه ګړ مي يار هم مي آشنا شي | بيا مي بله ګړ نه ګڼي آشنا
دا زه خپله تسلي کړم يار ئي/کوم يار بولم | څه ياري ده د ناتوان او د توانا
 | زه بهتره تر بقا ګڼم فنا
يو زمان يو دم او بې خپله صنمه | زه مشغول کړم خدای/رب د ترکو په ثنا
هر سړی په يوې چارې خدای مشغول کړ | بخښنده/په خندا شه که نادان يم/يې که دانا
ما بې عشقه بل هنر نه زده ناصحه | پروا نه لري که ووړ وي که برنا
چه مي غوږ په نارو نه باسي حيران يم | د رحمان په زړه کښي بله تمنا
بې د يار له ښه ديدنه دي خدای نه کا |

۴۴

چه ئي نقش په زړه خيال شي د آشنا | صدقه ئي سر و مال شي د آشنا
پس له مرگه به ئي تيغ هسي مخ روڼ وي | چه آشنا په تيغ حلال شي د آشنا
په آسمان د آشنايۍ به ئي مکان وي | چه زمين غوندي پايمال شي د آشنا
خوشحالي زما د زړه په هغه دم وي | په هر دم چه زړه خوشحال شي د آشنا
روح هغه ساعت داخل گڼم په تن کښي | چه مي دخل په وصال شي د آشنا
هم هغه يوه گړۍ را باندي کال وي | چه يوه گړۍ محال شي د آشنا
نور د هيچا قيل و قال مى پکار نه وي | چه تر غوږ مي قيل و قال شي د آشنا
زرغونه کاندي دانه زما د عيش | چه په زړه مي زرغون خيال/خال شي د آشنا
نه بل څوک زما طبيب بې آشنا شته دى | نه بل څوک به په مثال شي د اشنا
د رحمان نظر په هيچا باندي نه وي | چه نظر ئي په جمال شي د آشنا

۴۵

که ماښام تر ستوني ښکته کړې حلوا | سبا خواست کوې له خدايه د ښوروا
په هيڅ حال کښي دي قرار و صبرنه شي | ليونى کړې ډير حرص ډيرې هوا
تمام عمر تر يار/آشنا تر عزيز پورې | لويې/يوې گيډې مختورن کړې هم رسوا
چه په خپلې رسوايۍ دي پروا نه شي | نور به څه کړې په جهان د چا پروا
چه د نفس دپاره لاس و خداى ته نيسې | دا زحمت له خدايه غواړې که دوا
نفس بې شماره عالم پرې يوست و کوهي ته | خداى دي نه کا نابينا د چا پيشوا
په روا په ناروا کله پوهيږي | و چارپاى ته څه روا څه ناروا
چارپايان که غوږ و سترگې لري څه شو | په معنى کښي نابينا دي ناشنوا
زه رحمان له هغه علمه پناه غواړم | چه له دينه له مذهبه وي سيوا

۴۶

دل و دين مى هغې ترکې کړل رها/په هغه تُرک کړه فدا | لا ئي نه حسابَوي د ځان بها
د ښايست صفت ئي څو کوم حيران يم | په هيڅ شان ئي موندى/ه نه شي انتها
د صورت له عيبه هسي پاکيزه دى | لکه ذات د ويښته نشته دى په ها
که ئي مخ په زلفو پټ وي باک ئي نشته | تل به گنج باندي پراته وي اژدها
لکه نمر هسي جلوه کا په شفق کي | چه په سر کاندي اودښى/نړى د سوها
نه پوهيږم چه په کومه لاره درومم | چپ و راست مي رقيبان دي هزارها
خداى دي هسى تنها نه کا څوک په غم کښي | لکه زه يم ستا په غم کښي يک/د يار په غم کښي يم تنها
هميشه د بيلتانه په غم کښي/له غمه لولم | زه رحمان نَعُوذُ بِاﷲِ مِنها

دل و دین په نیم/یو نگاه د سړي یوسي
بل به هسي سرګردان په جهان نه وي
ته چه ژغورې سر و مال په عاشق کښي
د جنت له حورو تېر شه که یار غواړې
د ساقی له لاسه هسي پیاله نوش کړه
چه ئي کسب عاشقي شي د دلبرو
یو ګفتار ورلره بس کاندي رحمانه

آواره کړه اول دین، پسې دنیا
دغه قوم دی بې وفا و کبریا
چه غوږ نه باسي د چا په واویلا
عمل نه کا په ګفتار د اولیا
نه یې ویره له چا کیږي نه حیا
یا عاشق دی یا آسمان دی یا آسیا
عاشقي دا هسي چَري(چیرې) وي ویړیا
خدای دي نقد د چا و نه کاندي نسیا

| | |
|---|---|
| که مین یې په خپل یار باندي رښتیا | چي دي غوڅ کا د زړه خیرې د ریا |
| په وفا د دلبرانو غلط مه شه ! | نظر نه کاندي په کسب د کیمیا |
| د خوبانو طایفه ده هسي شوخه | څه به هر ساعت پو ښتنه کړي بیا بیا |
| د ډیر ناز او د ډیر کبر له سببه | |

۴۸

| | |
|---|---|
| عاشقي مي ئي په زړه وکړ ګذر بیا | ما به ستا له غمه وران کا/کړه دا |
| که دفترد خپل قسمت می په خپل لاس | دفتر بیا |
| وای | جدای یي راته جمع کړ لښکر بیا |
| ما لا نوم د عاشق آخستي نه وو | که صورت مي خدای پیدا کړو په محشر |
| پس له مرګه به ئي بیا له تا قربان | بیا |
| کړم | چه مي ولیده په سترګو ستا بشر بیا |
| د هجران محنت مي واړه له زړه هېر | خدای و ما وته څرګند/ښکاره کړو هغه |
| شو/شه | نمر بیا |
| چه آسمان ئي مخ پټ کړی په سحاب وو | خپل حبیب را باندي پرانیست هغه ور/در |
| چه رقیب راته تړلی په زنځیر وو | بیا |
| په یوه نظر ئي زړه را څخه یووړ | خدای دي خیر کا چه لا وکړي بل نظر بیا |
| په وصال ئي منت بار اوسه رحمانه | په صدف کي دخل نه وي/نشته د ګوهر |
| بیلتانه مي لنبې بلې کړې په سر بیا | بیا |

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا
هم په دا خوي و خصلت به (صبا)سبا پاځي

نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله
چه ئي (اوکړه) وکړ قناعت په دا دنیا

یو نفس د خدای په یاد واولَی تر دی
په دنیا کښي لوټ هغو عالمو (اوکړ)وکړ نه یوه ګړ طاعت په دا دنیا

که نعمت دی خو طاعت او عبادت دی
نه د درست جهان دولت په دا دنیا

که محنت که مشقت دي خو د دین دي
چه ئی وکړعبادت په دا دنیا

بې له خدایه هر چه دي همه/واړه فاني دي
ګڼه نشته بل نعمت په دا دنیا
پکار نه دی بل (محنت)نعمت په دا دنیا

که بادشاه دی/وي آخر خاورو لره/له به درومي
که لذت دی که زینت په دا دنیا
څه عزت دی څه قربت/حرمت په دا دنیا

له هغه به زیات نادان په جهان نه وي
هر چه غواړي فراغت په دا دنیا

ته چه څو وقته فرصت په دنیا غواړې
چا موندلې دی فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریګ/ریګو روان کاندي
هر چه کاندي عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزشه څه کم نه دی/وي
د سړی استقامت په دا دنیا

هر ژوندی چه د مرده په قبر ورشي
بس دی هُمره نصیحت په دا دنیا

په روانو اوبو ورشه عمر ګوره
ډیر دی هُمره اشارت په دا دنیا

دا پاخه پاخه سرایونه محلونه
خود به وران شي عاقبت په دا دنیا

وری سترګي د آسمان څه هسي نه دي
چه څوک پرېږدي سلامت په دا دنیا

هر چه راشي همه واړه ځني درومي
مسافر دی هر صورت په دا دنیا

ریاضت په قیامت نه شي مرد هغه دی
چه ئي (اوکړه)وکړ ریاضت په دا دنیا
خدای څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا

بل ارمان به له جهانه یووړ نه شي
د هغه جهان سودا واړه دلې ده
که طالع د سړي نه وي جار وتلې
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو
ولایت دی خدای هغو لره ورکړی
که تمامه دنیا واړه سره یو شي
که ځوک مرد دی خو هغه دی په دنیا
کښي
چي رغبت یې د جمله بلاوو سر دی
په رحمن باندي دا عمر هسي تیر شو

هرچه کاندي زراعت په دا دنیا
زه یئ وینم علامت په دا دنیا
ما لیدلی دی قیامت په دا دنیا
هرچه اوسي امانت په دا دنیا

چه حاصل کا ځوک جنت په دا دنیا
هم جنت دی هم راحت په دا دنیا
پکار نه دی ضدیت په دا دنیا
همدغه دی شرافت په دا دنیا
لوی مقام دی عدالت په دا دنیا
مګر مهر محبت په دا دنیا
که ځوک کاندي تجارت په دا دنیا
هیڅ پټ نه دی حقیقت په دا دنیا
که ځوک غواړي ولایت په دا دنیا
چه یئ ورک کړ سکونت په دا دنیا
نور به نه کا خپل قسمت په دا دنیا
هرچي نه لري حاجت په دا دنیا
ځوک به څه کاندي رغبت په دا دنیا
لکه تیر شي یو ساعت په دا دنیا
۵۰

هوښيار مه ګڼه هوښيار د دې دنيا
رو ښنائی په هغو ز‌ړونو ده حرامه
پوچ ګوئي ده چه ئي اهل د دنيا کا
د طفلانو په څير واړه خاکبازي کړي
واړه ډکې خولې د پيو هلکان دي
هميشه به بې وقوف او بې شعور وي
د شرابو هم لا هُمره مستي نه وي
هر بيمار لره دارو په جهان شته دي
د هر سَوي علاج وشي په جهان کښي
هر چه واچوې و اور ته واړه سوځي
ګرفتار ئي هميشه په غم کي ډوب وي
تل به پروت وي په ظلمت و په تور تم
کښي
په مسلمو کښي خاصه مسلم هغه دی
څه و بت و ته سجده څه و دنيا ته
تن ئي پاتي شي بې سره سر ئي لاړ
شي
زوی و لوڼه يتيمان کا څني درومي
هميشه به ئي يو پڼډ د غم په سر وي
واړه غم دی که ئي پيرې که ئي
پلورې
همګي واړه ټګان دي ټګي کاندي
په دنيا به مينه نه کاندي هيچرې
چه نظر د چا په دين و په ايمان وي
لوی هلک ئي همه واړه مکاران دي
آشنايان ئي همه واړه مکاران/اغياران دي
چه پيدا شي همګي واړه فنا شي
چه ويريږي له کوه□ او له ګړنګه
هر سړي لره چي ورشي څني درومي
په يوه ګړ□ بهار وي بيا خزان شي
که هزار هزار پشت□ ورته ته کيږدي
که د اوسپنو حصار تر ځان چاپير کړي
لکه سيوری د آفتاب په مخ کښي ګرزي
هيڅ ګمان د بهتر□ ورباندي مه کړه
بې مقراضه غوڅوي د سړی
عُمر
پس له مرګه به حساب (د)له سړي غو
ښت شي
عاقبت خو به يو موټی شي د خاورو

برابر به له ګدايه سره پاڅي
پاس به داغ وي د لئيم په ټټر باندي
د قانع تر قناعته صدقه شه
پس له مرګه به همه واړه مظلوم وي
تر قيامت به دغه لس او دغه شل وي
چه ايام پرې د کفن (او) د غسل ورشي
بی وقوف دی وقوف دار ددې دنيا
چه پرې کښيني ګرد غبار د دې دنيا
هر کلام و هر ګفتار د دې دنيا
هر چه کاندي کار و بار د دې دنيا
کار ديده و پخته کار د دې دنيا
چه مخمور وي په خمار د دې دنيا
لکه مست وي خمر خوار د دې دنيا
دارو نه لري بيمار د دې دنيا
مګر سَوی په شرار د دې دنيا
موړ به نشي طلبګار د دې دنيا
هيڅوک مه شه ګرفتار د دې دنيا
چه اسير وي په کفار د دې دنيا
چه ئي وشلاوه زنار د دې دنيا
بت پرست دی پرستار ددې دنيا
سردار کله دی سردار د دې دنيا
بې وفا دي مور و پلار د دې دنيا
چه په سر ئي وي دستار د دې دنيا
نور څه نشته په بازار د دې دنيا
فروشنده و خريدار د دې دنيا
چه خبروي په اضرار د دې دنيا
هغه نه کا انتظار د دې دنيا
څه ويسا ده په مکار د دې دنيا
يار دی چيری په ديار د دې دنيا
راشه وګوره ناتار د دې دنيا
هغه نه درومي په لار د دې دنيا
ما ليدلی دی رفتار د دې دنيا
بقا نه لري بهار ددې دنيا
بې بنياده دی ديوار د دې دنيا
ښيښه وګڼه حصار د دې دنيا
نشته هيچري قرار ددې دنيا
کهتري ده وار په وارددې دنيا
هم دا ليل(همدا)وهم نهار د دې دنيا
په انداز و په مقدار د دې دنيا

گلعذارو گل رخسار د دې دنيا ظالمان و ستمگار ددې دنيا
شهزاده و شهريار د دې دنيا پوره نه کړ هيڅا شمار ددې دنيا
هر درم و هر دينار ددې دنيا بې پردې شي پرده دار ددې دنيا
هم دنيا و هم دينار/دنيا دار ددې دنيا

په تخته باندي بيرون شي له حجابه شرمناک او شرمسار ددې دنيا
تر/له هر چا به پيغمبر څخه وه ډيره که څه قرب وای يا وقار ددې دنيا
يو فساد به ئي بيان په رحمان نشي فسادونه دي بسيار ددې دنيا



له فراقه چي يې آه کړم سوک په سترګو ګرداب يو لستوڼی مي ګرداب شي بل
هومره تاو د بېلتانه راباندي زور شي چي حساب يې بيان نه شي په کتاب

١

هسي مست يم ستا د شونډو په شراب يو کتاب په سړبن کي چا ونه کړ
چه به نه وي بل داهسي مست خراب
لاس د ستا په مينه اچوم و گل ته لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخي او سفيدي ده ستا په مخ کښي/دستا دمخ ده که زما په مخ باران دی د (خوناب)سحاب
څه اثر به زما اوښکې په تا کاندي لا تازه شي اور په (اوښو)اوښکو د کباب
عاشقان دي سترګې روڼې کا په عشق کښي دا خو(ا)ب نه دی منزل ګاه دی د سيلاب
نه بل هسي رنګ امام شته نه محراب
ما چه خال د ستا د وروځو په ميان وليد مخ د ستا له غمه نغاړي په حجاب
ښاپير چه ليدی نه شي سبب دا دی ځکه زيست په توره شپه کاندي ماهتاب
چه سبا شي ستا تر مخ پوري شرميږي چه تحسين کا ستا په دور د آفتاب
حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو خدای دې تا لره درکړی دا خطاب
هسي نه چه زه دې ر وتا ته وايم د مصحف په صحيفو باندي اعراب
ستا د مخ په ورق باندي خط و خال دی هم په دا چه بې حساب دی بې حساب
ستا د حسن حساب هيڅ په رحمان نه شي بې رحمانه چه ئي وکړ دا کتاب

٢

چي يې وليد د ستا حسن بې حساب له دې قصده تاو پيدا شو له آفتاب
ستا له غم مي سترغلی سرې سرې ناغې شوې يا خيمې دي سياه پوش سره طناب
په آرزو و دي د نرګس سترګي ځلور سوې غونچه سره د زړه په وينو شوه غرقاب
که دي زلفې په مخ پيچوتاب شوې ښايي ويښته څه طاقت لري د اور له تاب
زه چي خدای د ستا له غم سره آشنا کړم نایاب خوشحالي مي نور نايابه شوه

سترغلي مي د فراق په ژړا سره شوو	د سبزي اثر يې پاڅېده له آب
مه، خورشيد چي دي ښايست پوري شرمېږي	ځکه مخ پناه کوي تر کوه قاب
زه دي پېژنم په اصل کي خاکي يې	ځان به څو ځنډې په ګوتي له تراب
څو دي خيال د آشنا ګرځي په لېمه کي	خبر زده کړه ته د اوښکو له سېلاب
د رحمان بخت به هاله له خوبه ويښ شي	که ته سترګي ورته پورته کړې له خواب

چي نسيم ئي د زلفينو را پيدا شي
چه د سپي آواز ئي واورم هسي خوښ يم
ما وې مخ ئي ګوندي وينم په خوب کښي
په غزل کښي خو دوه بيته انتخاب وي

بيا مي وېلوري/وسپاري د سترګو په قصاب
چه بې سره په سر نه لري حباب
دا هلال ئي په ځای راوشي  د رکاب
کنډولی په لاس سپوږميه هم آفتاب
له چشمانو مي بهيږي سره شهاب
يو لستوڼی مې ګرداب (شي) بل ګردآب
راته هيڅ شي د ګلونو آب و تاب
درست مي ډوب کاندي په مښک و په ګلاب
لکه څوك په نغمه خوښ وي د رباب
بارې چيري شي بې ياره د چا/خورد و خواب
د رحمان تمام غزل دی انتخاب

۳
لاس مي وتړي د زلفو په طناب
هسي آب ئي دی د دوو سترګو په تيغ کښي
چه توسن د فلك زين کاندي له نازه
په درګاه ئي درويزه کاندي د حسن
چه را يادې يي سرې شونډې سور پيزوان کړم/سپين رخسار دی
له فراقه چي يې آه کړم سوک په سترګو
چه د مخ و آب و تاب ته ئي نظر کړم
۴

د ریا زهد عذاب  دی هم عتاب

۵

ورقونه لټوم د هر مکتوب　　　　　　په کښي غواړم خال و خط د خپل محبوب
یا تنور دی یا دکان د آهنګرو　　　　　　چه په عشق کښي تصور کړم خپل قلوب
په خندا خندا ځان اچوي واورته　　　　　　خدای څوك مه کړه په جذبه د عشق مجذوب
زه چه غم د مهرویانو را په زړه کړم　　　　　　له دې غمه لاړ شي زړه را څخه ډوب
ګوره څه رنګ عشق آسان کړه و عاشق ته　　　　　　دا مشکل مشقتونه د ایوب
په ژړا ژړا تر هسي حده راغی　　　　　　چه ځان ړوند کړ په یوسف پسې یعقوب
عشق دی دا چه معشوقه شوه و عاشق ته　　　　　　نه رخسار د  مهرویانو په اسلوب
هغه څه پو ښتې له هجره له وصاله　　　　　　چه پخپله  هم  محب  شي  هم محبوب
چه نظر ئي له صورته په معنی کړو　　　　　　و رحمان  وته یکسان  شو زشت  و خوب

۶

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب راته هیڅ شي خپل تالاش و خپل ترتیب
مګر خود پخپله خدای د چا طبیب  شي  ګڼه نشته په جهان کښي بل طبیب
را څرګند دی سود و زیان د رقیبانو که خدای/خدای دي نه کاندي خپل یار د
چه خپل یار د چا رقیب شي مثال دا دی  چا رقیب
چه غریب شي په وطن کښي فرق ئي نه لکه څوك چه په  وطن  کښي  شي
وي غریب
ما په عشق کښي هیڅ حاصل نه کړه بي که فرسنګ ئي وي ترمیانه  که جریب
غمه هر چه وایئ واړه ښه وایئ ادیب
د ښمن هم د سړي کله کله دوست شي  دوستي  نه کا د رحمان سره حبیب

٧

زه په سل رنګه راغب ته په سل رنګه غایب
دا به څه رنګ شي دلبره چه زه مست یم ته تایب
که له جوره دي فریاد کړم دا هم نه دی مناسب
که څه وایم نه مي رسي زه مغلوب یم ته غالب
څه سیالي برابري ده د مطلوب او د طالب
دا ستا مهر و محبت کړ خدای په ما باندي واجب
درد و غم دي ھُمره نه دی چه ئي وکښم په کاتب
جدائي ده ډیره سخته د ارواح او د قالب
چه مجنون په ځانکندن شه/شو زه ئي پرېښودم نایب
وصیت ئي راته وکړو په څو رنګه عجایب
چه روزي دي شه رحمانه زما واړه مراتب



١

که مي وشي له دلبره ملاقات زه رحمان له هسي اهله پناه غواړم
پس له دې مي دي استوګنه خدای نصیب بیا به نه ځم له دې دره په حیات
کا په دا در کښي  که  حیات وي که ممات
ځای لري/ښائي دا که زه خپل یار وته هغه یار زما قبله دی د حاجات
سجده کړم که شکرې وي که قند وي که  نبات
د خپل یار تر لعلو لبو به ئي ځار کړم لکه نمر په صومعه د سومنات
دا زما د یار جلوه  ده  چه  لیده  شي چه خبرې کړي د کشف و کرامات
تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دی چه ئي کاندي څوك په رسم و په عادات
د ریا له زاهدي زما توبه ده په شپه ناست وي د مغان په خرابات
په ورځ پند ونصیحت وایئ  و بل  ته پرې را اړوي وحشیان د مخلوقات
دین ئي دام وي ددنیا په لارکي ایښی چه په لاس  ئي سرسایه وي یا زکات
د هغو په لور ئي سترګې وي ختلي هر چه لاف کا په خلاف د مقامات

۲

آفرين د عاشقانو په همت | که تمام جهان پرې وايئ ملامت
نه ئي هيچري تغيير و نه تبديل وي | غوږ ئي نه وي د هيچا په نصيحت
که خوك سل نصيحتونه ورته کاندي | خوك کولی شي دا هسي مشقت
چه په يار پسې تر ځان و جهان تير شي | تمام عمر ورته ښکاري/ورښکاريږی يو ساعت
که تمام عمر ئي يار په سترگو ناست وي
که يو دم شي هغه يار ور څخه لري | د/هغه دم شي ورته عمر د قيامت
که دوزخ لره د يار په مينه درومي | دوزخ هم ورته جلوه کا د جنت
د عشق لاره د توکل په پښوغوځيږي | نه په پښود رياضت و ديانت
په تدبير او په تالاش کله مونده شي | چه موقوف وي هغه کار په عنايت
د عاشق خاطر له غيره پاکيزه دی | ددرياب په مخ کښي نه وي نجاست
خدای چه زړه د مطلوب کاښی کړ رحمانه کاښی پريووت د طالب په عمارت
چه په عشق کښي يك انداز وي يك جهت



۱

د وصال شپه مي بدله په بيلتون شوه الغياث | دقيامت خواري را پېښه په ژوندون شوه الغياث
ما لا طمع د وصال د نعمتونو ترې کوله | نا گهان کاسه/پياله نسکوره د گردون شوه الغياث
هغه چار چه مي په لاس وه زه پرې نه وم پوهيدلی | اوس چه پوه شوم له اختياره مي بيرون شوه الغياث
د وصال په طمع طوق د جدايۍ شه را په غاړه | هغه طمع چه زما وه اوس طاعون شوه الغياث
په حکمت په عقل پيتی د عشق خوك اخستي نه شي | په دا کار کښي ماته ملا د افلاطون شوه الغياث
ما رحمان د يار وصال په آسانۍ موندلی نه دی | زرد روئي مي سرخروئي په ځيگر خون شوه الغياث

۲

يار ياري را سره نه که الغياث | نه ئي ترس شي نه ئي کرکه الغياث
سرو و مال واړه زما و دل آرام ته | نه ارزيږي په کنجکه الغياث
په حملو حملو مي زړه وري نه پوهيږم | افريدۍ ده که خټکه الغياث
بيلتانه ئي پيښاور راته تنور کړ | له خيبره تر اټکه الغياث
خو چه را کاږي چوگان په مخ د زلفو | گوی زما دا خراب زړه که الغياث
هيڅ سبب ئي موندی نه شي جفا کاندي | نه پوهيږم چه په څه که الغياث
په اخلاص او په راستۍ ورته ولاړ يم | يار جفا همره په څه که الغياث
سل خبرې که له صدقه ورته وکړم | يار يوه را سره نه که الغياث
چه مي ويني له رقيبه سره خاندي | په ژړا مي ليمه سره که الغياث
زه رحمان مدام د يار په رضا درومم | يار په خپله رضا تله که الغياث

چه ويلي مي له تا دی دا حديث سر نامه د هر انشا دی دا حديث
چه آغاز مي کړه په مدحه د خوبانو ځکه گنج بې بها دی دا حديث
په ثنا د دل پسندو دلرباوو دل پسند و دل ربا دی دا حديث
لکه باد د صبحدم چه غنچه وا کا هسي رنگه دلکشا دی دا حديث
چه اوصاف مي د سرو شنډو په کښي راوړه خوږ تر قند و تر حلوا دی دا حديث
که نفس د مسيحا دی دا حديث
نه پوهيږم چه اوبه دي د حياتو ځکه هسي رنگ صفا دی دا حديث
د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دی دروغ نه دي په رښتيا دی دا حديث
ستا و مخ ته که څوك شمس و قمر وايئ رحمان وايئ چه زما دی دا حديث
که څوك وايئ چه چا کړی دا حديث دی

ج

چه برهم کا عاشقي د چا مزاج حکيمان ئي درمانده شي په علاج
په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترگو د اوبو په ځای خوناب کاندي اخراج
دواړه لاس ئي وي له دواړو کونو وللي ډوب وي تل د عاشقيه په امواج
په هغو کښي چه څه بوي د عاشقئ وي په کښي نه وي بوي د رسم و د رواج
ابراهيم ادهم څه هسي نادان نه و چه نظر ئي يا په تخت ؤ يا په تاج
مجنون هسي رنگ مين په ليلي نه و چه په نورو ئي موقوف وي احتياج
ليونتوب له ليونو تلونی نه دی که ئي راج په خونه ورشي که تاراج
که ئي سر لکه منصور غوندي په دار شي دغه دار دی و رحمان وته معراج

## ح

١

په طلب د ماهرويانو سرگردان دی زما روح لکه باد د گل په بوي پسې پريشان دی زما روح
ستا د حسن و آفتاب ته چه سپارلي ځان شبنم دی لکه صبح د ژړا په ځای خندان دی زما روح
چه مي وليده ستا د جمال عکس په خپل ځان کښي هم په دا د آينې په خير روښان/حيران دی زما روح
ستا د مخ د آئينې له برکته زما جانه هميشه لکه طوطي هسي گويان دی زما روح
لکه رنگ د ميو نابو چه ليده شي په ښيښه کي هسي رنگ په ضعيف تن کښي نمايان دی زما روح
منتظر دي د وصال د گلستان يم تل تر تله سر تر پايه د شبنم په څېر چشمان دی زما روح
چه حاصله مي له حسنه روښنائي شوه په طلب کښي شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دی زما روح
ستا په زلفو په رخسار پسي رحمان يم بې وطنه مسافر د هندوستان و خراسان دی زما روح

٢

چه هر گزمَلَكُ اَلمو ت پرې نه پوهيږي　له صورته دی وتلی زما روح
ځان ئي هسي ستا په مينه پسې ورك كړ هسي شان دی تا وكښلی زما روح
كه وي هم به تا څخه وي كه خدای كاندي چه هيچا نه دی موندلی زما روح
بلبل نه دی دا چه الوزي په گلو　نه دی بلې خوا ته تللی زما روح
چه ئي خاورې كړ صورت د ستا په در كښې　ستا په لور دی الوتلی زما روح
سر تر عرشه دی وكښلی زما روح
ته ئي پيژنې چه څه دی يا څه نه دی　نور چا نه دی پيژندلی زما روح
زه رحمان له خپله ځانه/ياره خبر نه يم　چه په څه رنگ دی وكښلی زما روح
ستا هجران دی را پرودلی/نيولی زما روح

## خ

١

ما سحر سبا ليدلی وو د چا مخ　چه مي درسته ورځ ونه ليده دا ستا مخ
دا خو مخ زما و تا وته خدای هيڅ كړ　گڼه هر يو آشنا گوري د آشنا مخ
ډير مخونه د جفا دي را څرگند كړه　لا به كله را څرگند كړې د وفا مخ
څو د مرگ په تماچه او ښتی نه دی　اوښتونی له تا نه دی/مه گڼه زما مخ
زه په تا پسې راغلی په دا مخ يم　كه ته نه وای ما به څه كول په دا مخ
ما به څه لره په تا پسې ژړا كړه　كه موندی شوی بل د ستا په څير زيبا مخ
د رقيب طمع مي نه وه ستا په در كښې　په جنت كي دي را وښود د بلا مخ
زه به څه رنگ د رقيب و مخ ته گورم　كله اهل سنت گوري د ترسا مخ
د چكنا چكڼ بيلتون په نيمه شپه وي　ستا زما په حال غماز شه د سبا مخ
رحمان ستا په مخ دا ورانه دنيا گوري　خدای بې تا ور څرگند مه كړه د دنيا مخ

٢

كله شو لا كله خريدار يم ستا د مخ　هره خوا چه درومم زه رحمان د زړه په سېل
بې د ستا له مخه نور مي هيڅ په مخ كښې نشته　تير تر سر و ماله په بازار يم ستا د مخ
هيڅ په سترگو نه وينم دا خپل صورت چه كوم دی　هسي رنگ نتلی په ناتار يم ستا د مخ
ډوب تر هسي حده په انوار يم ستا د مخ
درد و آه وكاږم بهانه د تماكو كړم　سوی لوغړن مدام په نار يم ستا د مخ
نور وگړي واړه همگي د دنيا كار كا　زه هميشه غرق په انتظار يم ستا د مخ
شكر چه ئي خلاص كړم د نور خلقو له منته　سر په سجده ايښی منت بار يم ستا د مخ
بل مطلب مي نشته طلبگار يم ستا د مخ

٣

چه یوسف ئي د دنیا په متاع ورکړ
گڼه نه به وي انسان دا هسي شوخ

چه بوسه له یاره غواړي بې ادبه
چې/که پیدا نه وی آسمان دا هسي شوخ

نور به نه وي مردمان دا هسي شوخ
آفریده کړه خدای جهان دا هسي شوخ

نه لړم شته نه ماران دا هسي شوخ
پیدا مه شه بل کاروان دا هسي شوخ

ولي نه لکه هجران دا هسي شوخ
خدای دي نه کاندي رحمان دا هسي شوخ

**د**

١

لکه سیوری چه د نمر په مخ کښي گرزي
هیڅ وفا ئي له هیچا سره و نه کړه
که جمشید ؤ که بهمن که کی قباد ؤ
رسَولي ئي تر مراده هیڅوك نه دي
نه چا ختم نه دعا ورپسي وکړه
زه رحمان د زمانې له جوره درومم
ما د عشق عمارتونه کړل آباد
لکه نوم دی د مجنون او د فرهاد
چه به نه وي بل دا هسي پیر استاد
چه څوك قطب کا څوك غوث کا څوك اوتاد
څوك به څه کا په دا چارو اعتماد
نه استوگنه چیرته کاندي نه اِستاد
که جمشید ؤ که بهمن ؤ که قباد

پادشاهانو که قصرونه کړل بنیاد
که نمرود ؤ که فرعون ؤ که شداد

نوم د کوم یوه بادشاه هسي یادیږي
همه واړه هسي پاتي شول نامراد

عشق عاشق لره یو هسي پیر استاد دی
که ئي آل که ئي عیال ؤ که اولاد

دغه واړه کرامات د عاشق دي
خپل صاحب لره په داد و په فریاد

د دنیا چارې همه واړه فاني دي

٢

په تاثير ئي هسي زه شوم سر بلند  ولي نه يم په دا چارو ډير خورسند
زه هم هسي په دا دور کښي يم څرگند  ما غوڅ کړی دی له ځانه بل پيوند
هر کلام مي د لپذير شه دل پسند  نه خليل نه داودزی يم نه مهمند
په شکرو کښي هم نشته هسي خوند  گويا پلار ته نصيحت کاندي فرزند
حلوايانو څخه نشته هسي قند  گويا کاندي په خپل ځان پوري ريشخند
بل به نه وي سخندان و هنرمند  بيا هاله دي و رحمان ته وايئ پند
ولي نه يم د زمري په څير گزند

٣

که قاصد يې د مقصود آواره کړه زيان وسود
هرچه درشي ستا په وړاندي واړه وګڼه بهبود
هرچه دي سواى له خدايه واړه وګڼه نابود
رضا پاسله وقضاته مدام خوښ اوسه خشنود
و هست وته جلوه کا لکه ابر هسي دود
ته وځان وته نظر کړه چه قبول يې که مردود
نندارچي د خپل صورت شه چه مسلم يې که جهود
امتي د ابراهيم شه تابع مه شه د نمرود
د غفلت له خوبه پاځه ځوبه اوسې خواب آلود
مقيد و مشغول اوسه په دعا و په درود
آسمان طوره په رکوع شه زمين طوره په سجود
هر/ټول اشيا د خداى ثنا کا په نغمه لکه داوود
که بيدار شې خود به واورې په هر لوري دا سرود
که اياز غوندي بنده شې نور به ناز کړې په محمود
(هر)ټول اسباب د ښو د بدو مُهيا دي هم موجود
که دانايې و بله بيل کړه فرموده و نافرمود
څو/چي سپند نه شې په اور کښي نه وي خوند دبوي د عود
ځان له خبثه/غشه پاکيزه کړه لکه بحر نامعدود
هلاک ځکه شي/شو رحمانه چه يې پاک نه شو/پاک نه شي دا وجود
رحمان بې د يار له ذِکره نه زده بل ګفت وشنود

**ړ**

چه مي يار وليد په سيمه د اغيار ګړ له غيرته مي ليمه شوه په خونبار ګړ
دغه حق د بلبلانو په جانب دى خداى دي نه کا مښګيرك په لاله زار ګړ
زه په وصل کښي هجران هسي پيځمه لکه څوك چه خالي لاس وي په بازار ګړ
په اميد د زلفو ونښتم په دام کښي روهيلى وم ساده دل په هندوبار ګړ
د ديدن په ګدائي کښي مي ننګ نه شي درويزه کړم/درويزګر يم د ښتانو په بازار ګړ
د وفا د ګلو پاڼي په کښي نشته کاشکي مه واى د دې دهر په ګلزار ګړ
زړه مي بې خپله نګاره آرام نه کا که هر څو ئي کړم په نقش و په نګار ګړ
که پخوا تر آشنائي بيلتون ليدى شواى هيڅ بنده د خداى به نه ؤ په دا کار ګړ
سخت سفر د عاشق څوک او زه څوک خداى ناڅاپه پرې راګډ کړم په دا لار ګړ
زه رحمان ئي د فردوس له غمه خلاص کړم چه په کلي په کوڅه شوم د خپل يار ګړ

## ر

۱

په بزرګ د هغه پاك پرودګار موقوف مه شه په سړي دسړي کار
په سړي چه د سړي غرض موقوف شي نور بې آبه بې حرمته شي روزګار
احتياج هسي بلا ده په جهان کښي چه پلار زوی کا د زوی او زوی د پلار
که د پير په خپل مريد باندي غرض وي هيڅ يې نه وي په مريد باندي وقار
زمانه هسې په مخه ده بې رويه چي غالب کا په اسلام باندي کفار
په ساعت کښي ګدا شاه کا شاه ګدا کا دا فلك ځکه باله شي کج رفتار
چه همه عمر ئي تاج وي په سر ايښی ور په سر کاندي ګيډ د خس و خار
چه قادر نه په درم و په دينار وي په هغو باندي ګنجونه کا انبار
زمانې د رحمان زړه دی کباب کړی له احواله ئي څوك نه دي خبردار

۲

همره اوښکې مي بهيږ ي په رخسار په ګريوان ئي تل د اوښکو باران اوري
هغه يار مي هسي ناست د زړه په سر دی چه غرقاب مي هم ګريوان دي همکنار
که څوك وايئ چه مار کله په کټ خيژي لکه ايښی چه چا ګل وي په دستار
خو د يار بيمارې سترګې خدای خوني کړې زه خوړلي يم په کټ د زلفو مار
که په دار شم زه د يار له لاسه خوښ يم ګڼه خون کله کولی شي بيمار
بس که دا چه زه په يار پسي غوڅ غوڅ يم سروقد دی زما يار زما دلدار
همره جور لکه يار له/چه ما سره کا خدای دي نه کا/کړي لکه زه يم هسي يار
دلبران کوډې جادو کړي زړونه اخلي ياد مي نه دی همره جور د اغيار
چه د زړونو له نمانځلو بې پروا دی/ي هغه وايه چه بې کوډو وي دلدار
تروکه زړه د سړي يوسي څه پکار
نه ورَکيږي د رحمان د زړه غبار

۳

چه دي زړه پوري تړلی استوار چه پيدا شي همګي واړه فنا شي
ته خپل پلار و نيکه وګوره چه څه شول
تل ړومبی د ورستي پُل دی پرې تيريږي دا جهان دي د نيکه دی که د پلار؟
هسي نه چه زه يوازي تا ته وايم هسي ستا دی هم په دوي پسې رفتار
دعوی مه کړه په ناحق به ئي خپل نه کړې کړی نه دی چا په پله باندي قرار
چه استوګنه په پردي وطن کښي کاندي راغله لاړه ستا په طور صد هزار
که هزار قَسَمه وخوري په يو کار کښي پردی ښهر پردی ملك پردی ديار
چه په صبح شګفته شي/سبا شګفته کيږي ماښام رژي هغه نه لري د هيڅ واك و اختيار
که دي ورور که دي عزيز وي که دي يار وي نه کا څوك په مسافرو اعتبار
څه اميد دی په ګلونو د ګلزار
مه ئي ورور مه ئي عزيز ګڼه مه يار
اې رحمانه دا جهان دی دا ئي کار

۴
څو جفا قبوله نه کړي د اغیار و به نه ویني په سترګو مخ د یار
چه اول ئي خار زرغون شي په پهلو کښي غنچه هاله/هله شګفته شي په ګلزار
ولي بویه هر بنده لره خپل کار
جنت چا په رضایت موندلی نه دی پروت به نه ؤ په چندن باندي ښامار
که مونده شوی خوشخویئ په خوشبوئي (کښي) بخت دی دا چه څوك عزیز کاندي څوك خوار
آب تر لعلو د لاله ګلونو ډېر دی! لکه زلفي د خوبانو په رخسار
هسي زیب کا په بیاض د رحمان شعر
۵
څوك دي را کاندي قسم په کردګار ولي نور عالم مي بولي دنیا دار
زه دینار و درم نه لرم په کور کښي نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار
هم په دا چه نه له ځایه چیرته خوځم خبر نه یم په یمین و په یسار
نه مي ښکته ملك لیدلی دی نه پورته په خپل کور کښي مي سکون دی هم رفتار
آب و خور لکه آسیا په ځای را رسي
لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم که خزان را باندي راشي که بهار
توکل مي لاس پښې سره کړه په نکریزوچه پهِ ځای ئي کښینولی یم قرار
چه زما په باب کښي/دي کښلي دي رارسي که رحمت/راحت دی که زحمت دی وار په وار
چه هژده هزار قومونه ئي پیدا کړل مربي مي دی هغه پروردګار
کار همه په اراده د خدای موقوف دی هیڅ موقوف نه دی د چا په انتظار
غم به هیچیري و نه کا په دنیا کښي که څه کيږي د رحمان په اختیار
که درم لرم په کور کښي یا دینار
۶
دغه یار دی دا اغیار! دغه ګل دی دغه خار
دغه ګل دی دخه خار دی دا منصور دی دغه دار
دا رقیب دی دا حبیب دی دغه ګنج دی دغه مار
دغه عشق دی دغه عقل دغه غم دی دا غمخوار
دا هجران دی دا وصال دی دا خزان دی دا بهار
دا طاعت دا معصیت دی دغه نُور دی دغه نار
دا عالِم دی دا جاهل دی دا خفته دی دا بیدار
دا رحمان دی دا جانان دی دا طبیب دی دا بیمار
۷
هرچه نه وی خوارو زار په طلب د خپل دلدار
تر پړوني یې صدقه شه دهغه عاشق دستار
هزار حیف دی هزار حیف دی هزار څه لا صد هزار
چه عاشق په عاشق کښي نه حلال وي نه مردار
نه پتنګ د خپل څراغ وي نه بلبل د خپل ګلزار
نه مجنون غوندي رسوا وي نه منصور غوندي په دار

۸

دا څه مخ دي منور          چه هم شمس دی هم قمر
دا څه زلفې دي مُښکيني          چه هم مشک دی هم عنبر
دا څه پيوسته ابرو دي          چه هم نيش دی هم نشتر
دا څه سترګې دي قاتلې          چه هم سيف دي هم خنجر
دا څه شونډې دي ميګونې          چه هم می دي هم شکر
دا څه سپين سپيځلي غاښ دي  چه هم دُر دی هم ګوهر
دا څه سيب زنخدان دی          چه هم سيم دی هم ثمر
دا څه قد و څه قامت دی          چه هم ګل دی هم عرعر
دا څه ملا ده باريک وضعه چه هم موي دی هم کمر
دا څه زړه دی د خوبانو          چه هم موم دی هم حجر
دا څه يار دی نه پوهيږم          چه هم دل دی هم دلبر
دا څه بُت دی زما ربه          چه هم بُت دی هم بشر
دا څه شعر دی رحمانه          چه هم ګنج دی هم هنر

۹

نه به جوړ وي هميشه بازار د عمر
تل به نه وي شګفته ګلزار د عمر          هسي يون دی په تلوار تلوار د عمر
لکه سيند د اباسيند په غورزي درومي          هسي تيز دی بې سکون رفتار د عمر
لکه برق چه مخ څرګند کاندي بيا نه وي          چه نيوی نه شيهيځوك  مهار د عمر
سر کشي لري تر هسي حده پوري          خود به پريوزي عاقبت شهسوار د عمر
چه سمند ئي نه جلب لري نه واګې          بې وفا دی هسې رنګه/په هسي رنګ دی
په ساعت د سلو کالو ياري پرې کا          يار د عمر
خپل  صورت به د حباب په کمتر/سترګو ګوري          که څوك وکاندي په زړه کښي شمار د عمر
نه له  کوره  چيرته ځمه نه سفر کړم          بې سفره مي  غوځيږي  لار د عمر
عاقبت به  د اجل په مقراض غوځ شي          پيوسته به مدام نه وي  تار د عمر
بيا ئي وار په دا دنيا نشته رحمانه          په هر چا باندي چه تير شي/شو وار د عمر

۱۰

زه تير شوی يم تر سر          په طلب د خپل دلبر
څو ژوندی يم په دنيا کي  پرې به نه ږدم دغه در
د آشنا په طلب ګرځم          وچي شونډي لېمه تر
يوقدم مي دی په بحر          بل قدم مي دی په بر
دواړه لاس مي دي نيولي هم په شام هم په سحر
مناجات مي دی وخدای ته          که يې ووينم بشر
هميشه له خپله بخته          ګيله من يم مرور
چي په مايې پيرزو نه کړ  د خوبانو يو نظر
هم يې ونه ښود و ماته          بې له عشقه بل هنر
عاشقي مي خدای رسوا کړه    په جهان کښي لکه نمر
نصيحت راباندي نه کا          لکه موي همره اثر

واوره غوږ باسه ناصحه کوتاه وايم مختصر

په مولا مي دي سوګند وي هم په روح د پيغمبر
جاروانه مي بېرته نشته چه عالم شه را خبر
تر مئينه به يې زار کړم که مي سيم دی که مي زر
که مي سيم دی که مي زر که مي دُر دی که ګوهر
زه رحمان تر هرڅه تېر يم تير به نه شم تر دلبر

١١

پورته بدر را ښکاره شه ښکته نمر ښکته پورته واړه مخ دی د دلبر
نمر سپوږمي مي په پالنګ د پاسه رغړي چه مي يار په بالښت ولګوي سر
چه مي غوږ کاندي د اوښکو په در در
په سرو سپينو دُرو لعلو ئي غوږ ډک شي لکه موم چه په آفتاب شي برابر
چه دي وويمنم په مخ مي اوښکې دروميبې له دې ذکره چه الله اکبر
بل مذکور د سخنګويو سترګو نه زده چي هم اور دی هم اوبه دي د کوثر
ضد دي اور و اوبه بې د يار له شونډو د يار شونډي هم شراب دي هم شکر
په شرابو کښي خوند نشته د شکرو نه پټيږي آب د لعل و د ګوهر
که سل ځله پټ تر شونډو لاندي خاندي هسي بُت په بتخانه کښي د آذر
دا خو ما لره خدای راکړ ګنه نشته هم په دا چه نشته دا رنګه بشر
پس له دې به ئي په نام د ملَکَ بولم چه مدام د يار په مخ لري نظر
که رحمان صاحب نظر باله شي ښائي

١٢

هسي تله کاندي و ګور ته ياران ژر/زر زر لکه تله کاندي خپل کور ته کاروان زر زر
هسي زر زر مرګ په مونږه شتابي کا لکه لو د پاخه کښت کا دهقان زر زر
هسي زر زر دا دنيا وبله اوړي لکه اوړي و بله ريګ روان زر زر
هسي زر زر صورتونه دي نړيږي لکه رژي/ريژي لاله زار په خزان زر زر
هسي زر زر دا شيرين عمر تيرېږي لکه بحر چه بهيږي روان زر زر
هسي زر زر ځنبول د ښو نه وي لکه درومي له جهانه رحمان زر زر

که په قطع هم اوبه وي د کوثر — خدای ور مه کړه و چا هسي سیم و زر

که رڼائي وي د شمس او د قمر — له دې فیضه سره وګڼه ضرر

وخوړ مه شه د هغې وني ثمر — مګر دا چه تر ده ته  ئي زورآور

چه ولاړ وي لکه زوړند چاود کمر — ترو هاله ئي قدمونه ږده په سر

که د سرو زرو چاړه وي یا خنجر — دغه پسه ئي ځان وګڼه پدر

سود هغه دی چه د خیر وي نه د شر — بول وکړم زه رحمان په دا هنر

ګڼه ډیر دي په دریاب کښي دُر ګوهر

۱۴

په نظر د بې بصر — لکه شام هسي سحر
لکه شام هسي سحر — لکه سنګ هسي ګوهر
لکه سنګ هسي ګوهر — لکه خاوري هسي زر
لکه خاوري هسي زر — لکه خير هسې شر
په نظر ئي معلومېږي — همه واړه برابر
که ښه ورسره کاندي/وکا — تر بد یې وي بتر
که ثوك بد ورسره کاندي — تر نیک یې وي بهتر
نه په بد ويل زهيرېږي/زهير وي — نه په/پر ښه وي د چا زبر
په ثواب/صواب و په خطا ئې — نه دليل وي نه/په نظر
نه آګاه په خپل بهبود وي — نه آګاه په خپل ضرر
نه په عيب څه/باندي پوهيږي — نه پوهيږي په هنر
لکه ړوند و کوڼ چه ګوري — هسي هيڅ نه وي خبر
له طاعته له ګناهه — څه خبر وي ځناور
ځناورو نورڅه نه زده — يا ئې خوب/رغښت وي يا ئې خړ/څر
دا خو ته يې زما نفسه — چه دي زه کړم کورو کر
تمام ووتې له عقله — په دنيا پسي اوتر
نه دي فرض دخداى ادا کړه — نه سنت د پيغمبر
نه دي مرګ په زړه کي ياد وي/ياديږي — نه خواري دي د محشر
اوده پروت ئې دا دي نه زده — چه په خوا لرم سفر
په هردم درڅخه درومي — که پوهيږې دا بشر
هغه تور ويښته دي څه شول — چه هم مشک وو هم عنبر
هغه قد دي مجنون بيد شه — چه چنار وو هم نښتر
تن دي درست زير و زبرشه — زړه دي نه شه لروبر
تر پنجاه و شصته/تر پنجه تير شوې — ته لا ځان بولې پسر
نه دي ترس شې نه دي ويره — نه په زړه باندي اثر
بل به نه وي لکه ته يې — هسي شوخ و ځيګرور
په غفلت دي عمر تير کړ — نه رهرو شوې نه رهبر
عبادت دي په ريا شه — لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر — پټ په زَرو کښي حجر
لکه پټ وي په دانه کښي — سل اغزيه د شجر
لکه سحر چه بر پاى کا — سحر ګر و جادوګر
لکه تش صورت بې روحه — چه تصوير کا مصور
لکه تش کډو بی مغزه — ميان خالي و تن پرور
لکه زړى په ميوه کښي — درون سنګ بيرون ثمر
لکه بې لاسه لستوڼى — سر تر پايه پاى تر سر
لکه ټګ و دغا باز وي — په مرغانو کښي ږ/دګر
لکه بې نمکه ناوې — چه په سر کاندي ميزر
تر ميزر لاندي چا څه زده — چه دختر دى/وي که مادر

نه ئې حسن نه جمال وي   غولوي خلق په زيور
هی له هسي فريبيانو   لکه زوړند چاود کمر
نيم په زمکه کښي دننه   نيم پر سر وي لکه نغر/برسيره لکه غر
په دستار کښي ئې مسواک وي   تر بغل لاندي خنجر
په ايرو کښي پټ بڅري   په وښو کښي پټ شرر
په شپه ويني د مظلوم خوري   سبا/صباح کښيني په منبر
په زړه تور لکه تبئ وي   په مخ سپين لکه قمر
ددنيا په طلب ګرځي   خپل ځان بولي قلندر
کلمه په ژبه وايي   په زړه نه لري باور
په مثال د منافقو   نه مسلم وي نه کافر
نه مسلم وي نه کافر وي   نه پخلا نه مرور
پريشان ګرځي سر وهلي   کوی به کوی و در په در
هميشه رفت و آمد کا   د زردارو په ګذر
په کوڅه د دنيا دارو   ګو خوري/خورګي کا  لکه خر
اورنګ زيب هم يو فقير ؤ   چه ټوپۍ ئې وه په سر
و ټوپ□ وته ئې شا کړه   چه قادر شه/شو په افسر
خوئ ئې همره فقيري وه   چه څه نه وو ميسر
چه فلک ئې ياري وکړه   نور ئې ملک کړ مسخر
ګوره څه چارې ئې وکړې   په عيال د خپل پدر
وار په وار تر تيغ ئې تير کړ   د خورم تمام ټبر
يو ټبر د خورم څه ؤ   ډير عالم ئې کړ ډبر
تمامي جهان ئې ونغړد   چه ئې لاس شه باندي بر
په فريب فريب يی خپل کړ   بيجا پور او بهاګ نګر
بيجاپور بهاګ نګر څه وو   لا جنجی/چينجا و ج/چينجاور
هم ئې هند په ډکه واخست   هم کابل هم پيښور/و پښاور
بيائې ذکر شوه په زړه کښي   بادشاهي د هفت کشور
له حرصه ورته هيڅ شو   ه   هم دارا هم سکندر
خيال ئې دا وه په خاطر کښي   چه به خپل کړم بحر و بر
باري ورځ ورځني/ورځخه لاړه!   وقت پرې راغی مازيګر
نه ئې مراد د زړه حاصل شه   نه ئې يخ کړه خپل ټټر
همګي شو ځني پاتي   که ئې ملک ؤ که لښکر

خالي لاس له دنيا ووت		لکه عين درويزګر
له دنيا ئې هيڅ يو نه وړه		مګر شوئې يو ځادر
خوار حيران په ځمکه/زمکه پريووت		بې بالينه و بې بستر
نه پوزی شه ترې د لاندي		نه ترې لاندي شه ټغر
د بنې په خير خفيف شه		چه ثقيل وه لکه غر
د سيلاب په مخ کښي لاړ شه		لکه خس وي يا وزر
حق ئې پاتي په ګردن شه		د سپاهي و د چاکر
اوس ئې زه په روح دعا کړم		که ئې خدای کا بهره ور
حق تعالی يي په/که ئې نصيب کا		شيرين حوض د کوثر
د جنت په خوشبوئي ئې		خدای دماغ کا معطر
په درست هند باندي ئې حق وه		هند يوه شپه ؤه دی يو نمر
د دې نمر په روښنائي		تمام هند ؤ منور
په رڼائې خلقو زيست کړو		نه څه خوف ؤ نه خطر
خو چه مخ ئې په غروب کړ		نور پيدا شه شور و شر
چه په نوم د اورنګ زيب وو		وخوړ ګاو هغه دفتر
اوس نوبت د شاه عالم دی		دور طور شه  ديګر
خدای زده څه بازي شي پيښه		عاشوره/چي عاشور شي که اختر
رنګارنګه بازي کاندي		دا آسمان دی بازيګر
ګهې تلخ شي لکه زهر		ګاه شيرين لکه شکر
چه څه وشوه هغه وشوه		لابه کيږي مقدر
ما خو نوم د اورنګ واخيست		دا احوال دی د هرهر
هر سړی د خپلي خوني		هم بادشاه دی هم سرور
هرچه اهل د دنيا دي		واړه هسي دي اکثر
دا بيان دور و دراز ؤ		رحمان وکړ مختصر
نه پخلا نه مرور وي		پريشان ګرزي در په در

که مي غوا وي که مي وزه وي		که مي آس وي که مي خر
که مي مېږ وي که مي مږ وي		که مي اوښ وي که غاتر
که په کورکي مي کالي وي		که لنګ وي که ټغر

١٥

که تهمت که ملامت دی که پیغوره | غم ښادي دي د دې دهر خور و وروره
ما په ځان دی قبول کړی لکه پوره | لکه غوځ په خپل اولاد وي پلار و موره
په یقین به بد کرداره بدکردار کا | کشیده شي د بد کردار سړي پېغور

۱۶

پس له مرگه که څوك ارت غواړي خپل گور | څوك په آس د پاسه سور وي توغ د وړاندي
تر ځان زیاته کمه چار څه پکار نه ده | د ښنگو پورونه هر څوك و بله کاندي
چه جامه د چا کوتاه شي یا اوږده شي! | اې رحمانه د خدای نوم به چا وا نه خیست
هر سړی چه په حساب کښي تیر و بیر شي | که حق وایم همره ارت دي بويه کور
چه لائق د ملامت او د تهمت شي! | ځان په لویشت کړه چه دي څو دي اوږده سور
چه عزت حرمت ئي نه وي په جهان کښي | ورکاوه شي هنرمند لره پیغور
بې عزت سړی به خوښ د هیچا نه وي | ملامت پرې وایه کیږي لور د/په لور
خپل مجلس ئي تر جمله مجلسو خوښ وي | ځای لري که بې عزت شي هم سر تور
هر هم جنس د خپل هم جنسه سره خوښ وي | هغه هسي ژوندون وسوزه په اور
نا بینا په خپله سیمه کښي بینا وي | مگر هسي بې عزت وي ځني نور
که ته نه یې بد کرداره بد لمنه | په هر ځای چه سره جمع شي خمسور
درست صورت د یوه نوك په درد درد مند سي | زیب کا هره کشیده په خپل انځور
چه یو غاښ په خوله کښي زوړند شي یا ووزي | بینایان په پردي ملك شي کر و کور
یو سړی چه په کوړمه کي دچا بدشي | کښیدې منه بد کردار سړی په غور
بد کرداره زوی پیدا مه شه له موره | وران شي ښهر د یوه سړي په تور
هر څوك خپله خوشحالي/خوشنودي له خدایه غواړي | درسته خوله پرې بد نمایه شي هرگور
خدای پخپل قدرت څوك لوی وڅوك هلك کړه | واړه گرم کا/بد شي که پنځه وي که څلور
د چا تاج زرین په سر تر ملا خنجر وي | حبطه/ابته کاندي ناموس د پلار و مور
۱ | بارې نه شي دغه کار په زر و زور
| نه چه هر یو ښهر ډیلی شه یا لاهور
| د چا پنډ په سر په ملا ټونبلي لور
| څوك ږیر کلی گرځاوه شي په خره سور
| بخت هیچا ور کړی نه دی ځبله/چا له پور
| که د خدای چارې په پلار شوې یا په مور

شونډو/لبو دي لذت د مي/ميو ناب را ځخه يوونړ
ډيرې بې صبر د مخ آب را ځخه يوونړ
عقل ساقيانو په شراب را ځخه يوونړ
زړه ئي له ګوګله په شتاب را ځخه يوونړ
خراب زړه مي د دلبرو هوا يوونړ
ګوښې ګوښې ښايسته مي زړه وکاږي
چه مي زړه لره د تورو زلفو ځای غوښت
د سيلاب په مخ کښي کله د چا خوب شي
هغه عقل چه ئي لاف د خود رايي کړې
هغه رخت چه مي د صبر د سکون ؤ
که يې يوونړ خسته زړه/دل مي ترې قربان شه
هيڅ نا حق پرې شوی نه دی که حق وايم
د هوا له وړيو چا زده چه چا يوونړ
زه و کوم يوه ته وايم چه تا يوونړ
هغه زړه را ځخه ډيرې ژړا/تورې بلا يوونړ
شيرين خواب را ځخه ډيرې ژړا يوونړ
په يوه پياله د ميو مينا/ئي واړه له ما يوونړ
هيڅ را نه کړه مهوشانو ويړيا يوونړ
نا آشناؤ وړی نه دی آشنا يوونړ
معشوقې د رحمان زړه په رضا يوونړ

نور چا وړی نه دی خپل احباب را ځخه يوونړ
شغل د کتاب دي بل کتاب را ځخه يوونړ
واړه تا د حسن په اسباب را ځخه يوونړ
ستا ابرويو نقش د محراب را ځخه يوونړ

## ز

١

لکه کاندي په کوترو نظر باز
زه نور چا وته د راز خبرې نه کړم
بل بادشاه لره محال دی مُلك د زړونو
ستا د زنې تر سیب پورې را ښکارېږي
د تصویر له ګلوطمع د بوی مه کړه
هغه یار که په خپل ناز خوښ و خرم دی/وي
همیشه مې لاس نیولي دي دعا کړم
که څوك آه و فریاد ښه ګڼي په عشق کښې
ښادي هر چیري د غم په اندازه وي
نیستي واړه د هستۍ په دنبال ګرزي
دا قاعده ده لکه لوړ همره ژور وي
همیشه مې لاس نیولي دی دا خواست کړم

چه یکسان ګوري هم شاه و هم ګدا ته
هسې زه یم د دلبرو نظر باز
بې هغو چه موي مژګان لري دراز
مګر مخ د چا محمود شي خال اياز
نورې زنې د خوبانو لکه پیاز
له منقوشو مرغو نه خیژي آواز
زه هم خوښ یم همیشه د یار په ناز
چې مدام دي د یار ناز وي زما نیاز
زه په عشق کې دغه کار ګڼم غماز
هسې غم ددې د ښادۍ په انداز
نه ډوبیږي په اوبو کښې تش جهاز
بو صورت دی هم نشیب شي هم فراز
چه مدام دي د یار ناز وي زما نیاز
هسې یار دی د رحمان غریب نواز

٢

که بې ځایه زرکې نه وکښی آواز
ځکه/سکه له دې خبرې هسې معلومیږي
د منصور و حال ته ګوره حال ئې څه شو
دریغه دریغه که ورستي عقل ړومبی وی
نیك عمل د عالمانو نیك فرزند دی
چه فرزند ئې شراب خور و قمار باز شي
خدای له هسې زاه ـو زاده امان وکړه
چه منکر پرې اعتراض کولی نه شي

نه صیاد ځنې خبر ؤ نه شهباز
چه خپل صوت دی هر سړې لره غماز
خدای دي فاش د هیچا نه کاندي پټ راز
د انجام خبرې نه شي په آغاز
خدای څوك مه کړه شراب خور و قمار باز
نور ئې کاڼې شي د پلار په خونه ساز
چه بې دین يې دیانت شي بې نماز
دا دي شعر دی رحمانه که اعجاز

٣

بد اختر به نیك اختر نه شي هر ګز
که مکان ئې په آسمان دی/وي غزا وشوه
که ئې اصل له یوې زمکې وي څه وشو
که همه عمر باران ور باندې اوري
له نا اهلو د وفا طمع و مه کړه
که تور غر له ځایه خوزي و به خوزي
د رحمان په باب چه وشوه هغه وشوه

مرغچیچ/مرغ چوچه/مرغچه به دُر ګوهر نه شي هر ګز
ستاره به شمس و قمر نه شي هر ګز
بید به سرو و صنوبر نه شي هر ګز
خس به ګل د پیغمبر نه شي هر ګز
ګنده نل به نیشکر نه شي هر ګز
ولي نور به مقدر نه شي هر ګز
مکرر به دا دفتر نه شي هر ګز

## س

١

ويښته سپين، سترګې تاريکي، غاښ کنډاس
په هر لوري چه ئي مومې پسي درومې
يو ويښته د عقيدې دي په تن نشته
خدای رازق بولې/ګڼې او رزق ګڼې له کسبه
هسي رنګ په بد صفت يې موصوف شوی/مذبذب صفت موصوف شوې
په دويي کښي به ور نه شې تر توحيده
واړه زهر قاتل نغرې که پوهيږې
امر دا دی چه له نهې لاس کوتاه کړې
خير دي دا دی چه له شره وجار ووزې
که زما ويل دروغ او کوز و پاس وي
له سړيه غرض واړه سړيتوب دی
څه په دا به عراقي او ترکي نه شې
د تشنه خو له اوبو سره مطلب وي
هر زاهد چه په ريا زهد نازيږي
دا زما عاجز اميد دی که رب کاندي
اي رحمانه که څه کار دی خو د دين دی

نه وکاږې د دنيا له چارو لاس
نه په چپ لوري صرفه کړې نه په راس
سر تر پايه هسي ډوب يې په وسواس
په دا شناخت و ځان ته وايې حق شناس
چه هيڅ نه پوهيږم ناس يې که خناس
که پيشوا کړې مهتر خضر مهتر الياس
چه ته بې له خدايه نغرې هر انفاس
او که نه وي خپسر/خپلسر وګړه مواس
په دا چاره کښي هيڅ نشته کوز و پاس
ته پخپله په خپل زړه وکړه قياس
نه چه پټ وي د سرو زرو په لباس
که په خره باندي څوك سور شي که په آس
نه تش ايښي بې اوبو د زرو طاس
د څربښت ګمان ئي کيږي په آماس
په قيامت به مي شفيع شي خير الناس
نور کارونه بې وفا دي بې اساس

٢

تير شه درست عمر زما په دا هوس
يو پرسش د هغه يار ما لره بس دی/کا
هزار حيف دی چه په هر نفس تريې تښتم
چه ئي زه په هر نفس له خدايه غواړم
که يو خس وي په محتاجو لکه غر/کروړ شي
هر مرغه په خپله ځاله/جاله کښي همای دی
که شهباز لره سينه ده د تنزري
خو چه خاورو لره ورشي برابر شي
هم هغه مي/يې خندوي چه ژړوي مي/يې

که مي ويوښتې چه څوك يې يا څه کس
چې/که څه کس وي خو يې يوه وينا وي بس/يو او(تي)ي ورلره بس
هغه لور ته چه مي تله دي هر نفس
هغه کله کله وينم په ډير پس
څوك دي نه کا خدای محتاج د يوه خس
که قارغه که مښګيرك دی که ققنس
عنکبوت لره سينه ده د مګس
که چا غوندی وي اغوستې که/چا اطلس
بل څوك نشته د رحمان فرياد رس

٣

خالي نقش لکه عکس د معکوس خدای دي څوك مه کړه په خوديه کښي محبوس
عبث هسي په سر لوني خالي بوس زما يار غوندي به نه وي بل عروس
تمامي شر و شدت دي دا (ا)لوس نه پټيږي نور د شمع په فانوس
راشه وګوره ماڼۍ د کيکاوس/ديقيانوس
څوك دي ګډ کا په دا ښهر کښي جاسوس

**ص ۱**

ګوره څه بلند مقام دی د اخلاص چه جهان واړه غلام دی د اخلاص
که له زمکي و آسمان ته خاته ګران دي دا سفر په يوه ګام دی د اخلاص
چه خبر کا مخلصان له علم غيبه دا همه واړه الهام دی د اخلاص
د رواج و رسم عمر مدام نه وي لکه عمرچه مدام دی د اخلاص
بې اخلاصه حلاوت د اسلام نشته که اسلام دي خو اسلام دی د اخلاص
څه عجب دی که مستان وي ترې چاپيره هر ساقي څخه چه جام دی د اخلاص
څه عجب دی که هما ئي په دام نښلي هر صياد څخه چه دام دی د اخلاص
پس له مرګه به دا مهر و اخلاص نه وي که اخلاص کړې نن هنګام دی د اخلاص
د رحمان کلام په دا سبب شيرين دی چه ئي هر کلام کلام دی د اخلاص

۲

که تر ستوني دي شي ګوټ له جام خاص هغه دم به شې د غم له شيبو خلاص
تل په سپينه جامه ټکی بد ليده شي الخاص ته دا عامې چارې مه کړه (په) خاص
که د وري نهنګ ځان ته يو لقمه کړی زر به راوړې په تحقيق سره غواص
په لباس به دي آسان په صورت ګران شي مشکلات به دي اسان شي له اخلاص
که نغمه د محبت په غورو واورې په فلک به شې زهره غوندي رقاص
معنوي صورت پيدا کړه که ميړه يې فايده څه ده د بتانو له اشخاص
د بل خيز په خاصيت به هغه ګوري چي خبر نه وي د ميني له خواص
چي تارچه ورځني رخت د ميني نه که فهم دار اوسه رحمانه له رصاص

۳

که ګوهر د عشق په لاس راکړې غواص بيا هاله يې دی له ما سره اخلاص
په کاله به د رقيب غمونه زور شي الخاص که مي يار کاندي حساب له خاص
په کمند د مستې ميني د خوبانو خلاص بندي مه کړې خدای د حشره پوري
په رحمان باندي نظر د کرم وکړې ای چي يې د پاک الله په دربار خاص

۴

ساقي راکړه ته و ماته جام د رقص زه آرزو په زړه لرم مدام د رقص
ده وې اوس به د خوښ ساعت په تاشي مغني راکړ و ما پيغام د رقص
مسقي علم خپل استاد راته تعليم کړ رانمايې کړ هر تار مقام د رقص
سريې پاس تر نهه فلکه څرګنديږي چي په چا وشي ارشاد اعلام د رقص
چي جلوه پرې د محبوب له لوري کيږي رقص هرګز نشته په هغه اشام د

که ته نه کړې په بل چا باندي غرض — بل به هم نه کا/نه کاندي په تا باندي غرض

که گدا د بل په غولي غرض نه کړي — سپي به نه کړي په گدا باندي غرض

په ساحل کشت د هيچا نه ډوبيږ ي — که څوك نه کا په دريا باندي غرض

خلوتيان په خپل خلوت کښي فراغت دي — د رسوا دی په رسوا باندي غرض

دا دنيا په احمقانو ده ودانه — دانا نه کا په دنيا باندي غرض

زه رحمان د عشق په درد کښي هسي خوښ يم — چه مي نشته په دوا باندي غرض

٢

په دربار کوم د ښکلي دلبر عرض — په هردم په هر ساعت مقرر عرض

که قبول شي د مولا په پاک دربار کي — دا په روی د شاه نبي پيغمبر عرض

په مانند د ګړيال په پنځه وخته — په شورش دغه له خوفه د سفر عرض

بې خاونده د کار(و) کله څه کيږي — څه که کار ته هميشه که قلندر عرض

د رحمان بې نبي کله در څښتن ته — شوی کولی د بل کار سراسر عرض

٣

که مي يار په ديدن سر غواړي عوض — ورقربان شه چي دلبر غواړي عوض

چي هستي واړه نيستي کاندي واصل شي عوض — ګند کچکول دی قلندر غواړي

د دوه په اور به څه حاجت موقوف وي — عاشقي ترې خاکستر غواړي عوض

خپل صورت ورته نافه کړه ته د مشکو — يار مجمر لره عنبر غواړي عوض

د لباس له ښکليو طمع بوسه مه کړه — د بوسې په درکړه زر غواړي عوض

د دې دهر له ټګيه ويره وکړه — د کهتر په ځای بهتر غواړي عوض

د عشق درس څه په اسانه لوسته نه شي عوض — په دا ځای کي زير و زور غواړي

په يوځله به ترې خلاص نه شې رحمانه عوض — سر و مال دي مقرر غواړي

## ط

١

طمع مه کړه په دنيا کښي د نشاط — بيا به نه مومې نشاط په دا بساط

لکه راغله بيا به هسي ځني درومې — دا جهان دی د رهرويو يو رباط

تر هر ګام لاندي کوهی دی د دې دهر — ايښی بويه هر قدم په احتياط

و دانا وته په دا جهان ښکاريږي — هم جنت و هم دوزخ و هم صراط

په عاشق به هيڅ دهشت د رقيب نه ؤ — که ئي نه کړی له خوبانو اختلاط

له کم ذاته بې ديانته بې نمازه — طمع مکړه د نيک د يو قيراط

غم د ترکو تر رحمان هسي چاپير شه — لکه وسکښي جامه په چا خياط

٢

نن نګار و ماته راکړ د يار خط — وې يې واخله دا مي دی د دلدار خط

د غماز له دوراه تراهي وکړه — ځای به بايلې د مکار په جوار خط

چيري نه وي چي يې څيري په غفلت کړې — تل يې لوله په تميز په هوښيار خط

په مدت سره به ستا انجام ته رسي　　اسان کله دی دا ستا د رويبار□ خط
د غفلت له خوبه پاڅه بيداري کړه　　تل و تاته سپارلی د بيدار□ خط
برابر د خط په حکم قدم کيږده　　که ته غواړې په عقبی د نامدار□ خط
له ميزانه که امان غواړې رحمانه　　تل خو لوله په ډير عجز په زار□ خط

## ظ

١

اومه کله دي پاخه وايئ واعظ　　هر چه وايئ واړه ښه وايئ واعظ
دی چه ما له خپله ياره لري باسي　　نور به څه راته/ورته اومه وايئ واعظ
جاروانه زما له ياره ډير مشکل دي　　زياتي څه له دوباره وايئ واعظ
په خورو پستو خبرو ئي غلط شوې　　دا خواږه خواږه ترخه وايئ واعظ
څوك به څه باور د ده په نصيحت کا　　چه له ياره جار واته وايئ واعظ
زه بې عشقه بل يو کار کولی نه شم　　ډير له عشقه تښتيده وايئ واعظ
اعتبار ئي په نرم□ په ګرم□ مه کړه　　دا تاوده تاوده ساړه وايئ واعظ
اوريدونکی ئي رحمان د ويل نه يم　　بهتر دادی چه نور نه وايئ واعظ

٢

بلبلان که له ګلزاره مومي حظ　　مشتاقان له خپله ياره مومي حظ
زه دعشق له تاوده اوره بهره مند يم　　سمندر له سره انګاره مومي حظ
د چمن غوټ□ وا د سحر باد کا　　عاشقان خو له ريباره موم□ حظ
په طلب يې نفع مند شوم له هرچانه　　تل ښکاري له خپله ښکاره مومي حظ
مجنون بيا مونده خوښي په بيابان کي　　هر منصور له تيره داره مومي حظ
څو چي ملک د جهان زير و قدم نه کا　　په خپل ځای به څوک قراره مومي حظ
شګفته چي د غونچې غوندي سحر وي　　هغه ژړی به بی شماره مومي حظ
په ښندل د سر مي سر د وصل بيا موند　　وياري تل له وياره مومي حظ
چي نيولی يې خپل ځان د غم و اور ته　　رحمان ځکه له انواره مومي حظ

## ع

١

په تندي چه آتش بل کړ مدام شمع　　ځکه بيا مونده له خلقو اکرام شمع
په انوار ئي مُنَور اهل ابصار شو　　لا به کله شي ښکاره د انعام شمع
پتنګان ئي لور په لور تر مخ څرخيږ ي　　ځکه نه کوي په سول کښي آرام شمع
وسيزه ته ځان زما په شغله/شعله باندي　　کړه پتنګ ته په رموز کښي کلام شمع
ستا مجلس د خاص الخاصو سر فرازو　　د رحمان په څير نه مومي هر عام شمع

٢

که دي پرې کړه له وګړيو رښتيا طمع طمع　　نور بادشاه يې هرګز مه کړه له چا
زيړی رنګ د آشنای□ مبدل شي　　پيدا مه شه د اشنا له اشنا طمع
چي له ښکليو ددې دهر وفا غواړي　　د نادان په څير يې شي د کيميا طمع
چي مراد غواړي د زړه له مهرويانو　　ستا په دام کي نيوای شي د عنقا طمع
خدای دعقل جواهر ورته بخښلي طمع　　له نادانو به څه شان کا دانا

ځکه سپی دفقیر ښه او لمن نیسي
چي د خدای له دره پرې کا ګدا طمع
له دغه رنځ یې طاعون تبه بهتر دی طمع
ای رحمانه خدای دي مه کړه پیدا

**غ**

هر یو ګل د ستا د باغ روښن تر دی تر چراغ
ستا د باغ و د بڼ زاغ په نظر زما همای دی
د دردمندو په دماغ ستا د در خاوري عنبر دي
د عاشق د ښیر داغ په آسمان د عشق آفتاب دی
د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو
روښن تر دی تر چراغ هر یو ګل د ستا دباغ
په نظر زما همای دی ستا د باغ و د بڼ زاغ
ستا د در خاوري عنبر دي د دردمندو په دماغ
په آسمان د عشق آفتاب دی د عاشق د ښیر داغ
نه شي نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ

## ف

اورنګ زيب و شاه جهان غوندي اشراف
که دي تن په لويئ لوى دى ته ئي څه
کړي
بوالهوس دي عاشق ته هوس نه کا
د مکې په بزرګي کښي هيڅ شك نشته
که په سل دريابه غسل د ځان وکا
کشتي هم چه ډيره ډکه شي ډوبيږي
صابرانو صبر پرېښود حريصان شول
دا څلور واړه مذهبه سره يو دي
د همه واړه ملکونو څښتن خداى/يو دى
شهيدان نه دي هغه خون فروشان دي
د کاذب ژبه په خوله کښي وچه ښه ده
د ديوال په سر به څو زغلي تر کومه
آب و تاب د ناکره مهر وي همره/څومره
د دنيا په دولت ناز مه کړه رحمانه
مدح و هجوه د حبيب و د رقيب کړم
صدقه شه تر منصور غوندي نداف

مه کړه خداى چه کوه طور شي کوه
قاف
دا دروغ دي چه زر دوز شي بوريا باف
ولي خر به حاجي نه شي په طواف
ګمان مه کړه چه به سپى شي پاك و
صاف
د مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف
نه څه عدل شته په چا/ځان کي نه انصاف
ما و تا په کښي پيدا کړه اختلاف
که دوزخ دى که جنت دى که اعراف
چه/که خوني ته خون بها نه کا معاف
لکه توره د لرګيو په غلاف
دروغژن چه د دروغو وهي/کاندي لاف
څو نظر پرې شوى نه وي د صراف
دا يو موى دى په نظر د مو شګاف
رحمان نه زده بله هجوه بله لاف/نور
اوصاف

## ق

١

چه پاي بند شه د ليلى په اشتياق
چه د مى ود مطرب په خوند خبر شه
جام د ميو دى يا رقص د خوبانو
په نسيه ؤ نظر نه کاندي بې نقده
چه حاصله د دلبر يګانګي شي
حرکت له ځايه نه کا لکه شمع
خوښ وي هسي د خپل يار په درد وغم
کښي
هسي محوه وي د عشق په مي ناب کي
لا/که ظاهر په صورت وي په معني نه
وي
څو ئي تن په کار و زار کي فنا نه شي
د عراق آسونه کار په اشارت کا
چه خداى پوه کړل د ښو په څنبل/ځنبل
پوه شو
که ئي سر ځي که ئي مال ځي خداى دي
نه کا

د قسمت پارچې/پاسي په لاس نيولى
ناست يم
ته چه پند وايې ناصحه و رحمان ته
مجنون واچاوه و نورو ته طلاق
فراموش کړه صوفي نفل د اشراق
په هر ځاي چه وبله جمع شي عشاق
که څوك حوري ورته ستايي که/يا براق
د دوي خبرې نه کاندي مشتاق
که ئي اور د عشق/په سر بلېږ ي په تاراق
ته به وايې چه بادشاه دى د آفاق
چه خبر نه وي په وصل په فراق
لکه کښلى د لا لفظ وي په اوراق
نه جار باسي مخ آسونه د عراق
په وهل په کوټل کارکوي/ وي د الاق
چه پوه نه شو نه پوهيږي په شلاق
د طالب و مطلوب تر مينځ نفاق
نه پوهيږم چه به جفت شي که به طاق
کاشکي نور کړې هغه کښلي د ميثاق

خدایه څه شوه هغه ښکلي/ی ښکلي خلقپه ظاهر په باطن سپین سپیځلي/ی خلق
هیڅ خندا مي له دې خلقو سره نه شي ژړوي مي هغه تللي/ی تللي/ی خلق
خبر نه یم چه و کومه خوا ته لاړ شه لیدی نه شي هغه ما لیدلي/ی خلق
لکه ځګ چه د اوبو په مخ کښي دروميهسي درومي په دنیا راغلي/ی خلق
دریغه یو ځله خو بیا په جهان/دنیا راغلی له جهانه په ارمان وتلي/ی خلق
هزار حیف دی چه په خاورو کښي لاړه شي په چووا اوپه چندڼ لړلي/ی خلق
رحمان هسي ګوښه خوند له خلقو بیا موند چه هرګز نه دی دا خوند موندلي/ی خلق

**ك**

١

چه په زړه مي تور لحد شي د خپل خاك بې مزه مي شي هم خوب هم مي خوراك
چه د خوب او د خوراك مزه شي ورکه نور له مرګه برابر شي هغه ژواك
غلط وايئ چه څوك عمر ورته وايئ هغه عمر چه تیریږي په پخساك
نن سپیره په خاورو ډکه خوله بهتر یم چه آخر مي دا خوراك دی دا پوشاك
ځای لري که ځان ژوندی په زمکه خښ کړم چه مي پس له مرګه ځای دي یو مغاك
ګویا شوي دي هغه چه شدني دي زه پخوا تر هلاکته یم هلاك
زړه چه روغ وي ګریوان کله خیراوه شي له ګریوانه معلومیږي د زړه چاک
تن و ځای و جامه هله پاك پکار دي چه وړنبی/ړومبی شي د چا زړه له غیره پاك
سړی بویه چه درون بیرون ئي یو وي نه هغه چه بیرون زر وي درون لاك
له سړیه غرض واړه سړیتوب/سړي هوښ دی که په/نه چه سر کښي ئي طره وي یا مسواك
د دنیا چاري همه واړه فاني دي څوك یو دوه ورځي خوشحال وي څوك غمناك
په ساعت کښي څوك خوشحال کا څوك غمناك کا دا خویونه همیشه دي د افلاك
چه څه کاندي واړه خدای دی نور څه نشته رحمان څه دی څه ئي واك څه ئي ادراك

بی ښه خویه مخ روڼی له هېچا نه شي که هرڅو یې پاکیزه کا په رویمال څوک

٢

ژوبل ژوبل یم ټوك ټوك د دردمندو درد و دوك
دستار کيږدي په سر هوك ځان دي ژاړي كوك په كوك
۳
زړه مي تراشي د بڼو په تيره نوک ماتوي مي دوديرش غاښ واړه په سوک
په غمزو د تورو سترګو يم وژلی ژوبل ژوبل پړوکی پړوکی يم ټوک ټوک
که ناريږ وهم که خاوريږ په سر لونم/نولم ناروا شه که پروا لري يو ځوک/چوك
لکه ګل چه ځوک د طفل په لاس ورکا/که هسی رنګ دي زما زړه کړو شوک په شوک
که له ډيره درد و غمه مي زړه وچوي ورته هيڅ دي زما درد و زما دوک
درست جهان ئيږ په غم ډوب کړ سرترپايه که ګدا دی دديږ دهر که ملوک
د آسمان په نيلي سور لکه آفتاب شي د زربفتو دستار کيږدي په سر هوک
که انصاف لرئ په زړه کښي منصفانو راشئ ګورئ ددلبرو دا سلوک
زه به ولپ د خپل يار ثنا نه وايم چه سحر سحر نار وهي تل غوک
چه مئين/عاشق د دلبرانو په جمال شويږ/شي ای رحمانه ځان دي ژاړي/وژاړه کوک په کوک
۳
چه علاج كولی نه شي د قسمت ځوك په هيچا باندي دي نه کا ملامت ځوك
هغه چاري چه موقوفي په تقدير دي چي/څه پوهيږي د حكماو په حكمت ځوك
كه نظر كا و قضا و هم رضا ته چه د خدای په كړه/كړو كښي نه لري قدرت ځوك
د مطلوب جفا وفا واړه هنر دی
غم په ځان د چا پيرزو دی باريږ څه کا څه/چه غرور کا په طاعت په رياضت ځوك
د ابليس و رياضت ته دي نظر کا
علت لاړ شي عادت نه ځي له سړي نه خدای دي نه کاندي په بد چاريږ/بده چارعادت ځوک
زه رحمان د بيلتانه سيلاب يم وړی
ترو به څه وايئ و چا ته نصيحت ځوك که لاس را کاندي د خدای په محبت ځوك
کړی ئي نه شي په محنت په مشقت ځوك

بر ناحقه خاوري لوني په خپل سر ثوك
د هغه په ثير به نه وي بختور ثوك
و به نه كاندي بل مخ/خوا وته نظر ثوك
بل به نه وي زما يار غوندي دلبر ثوک
و آفتاب ته کتی نه شي برابر ثوك
دغه كار كولی نه شي هم هر هر ثوك
خدای دي نه كاندي زخمي په دا نشتر ثوك

چه شي ستا په خمارو سترگو ابتر ثوك
ستا په غم چه خاوري نه كاندي په سر ثوك
چه حاصله گونټه نه كا په شش در ثوك
چه د يار په غم كښي نه شي قلندر ثوك
چه په لور د خپل آشنا كاندي نظر ثوك
چه خوبونه كا د يار په خاكستر ثوك
دلته بويه چه پيدا كاندي رهبر ثوك
د رحمان په خير به نه وي بې هنر ثوك

۵

چه مشغول نه وي د ترکو په جمال څوك نور به څه کا په دنيا کښي اشتغال څوك
چه ئي قيل و قال له ياره سره نه وي له نور چا سره به څه کا قيل و قال څوك
د بل خط په عبارت به نظر نه کا چه نظر وکاندي ستا په خط و خال څوك
چه په اصل کښي خدای نه دی پيدا کړی ترو به څه غواړي دا ستاد مخ مثال څوك
نور خوبان د ستا تر مخ پوري دي هسي لکه بل کا د آفتاب په مخ مشال څوك
چه عنقا شو اهل دل په دا دنيا کښي ترو به څه ووايئ چا وته احوال څوك
که عاشق په عشق کښي ژاړي هيڅ ګرم نه دی په دا هسي درد کښي نه لري مجال څوك
چي يي قيل وقال له ياره سره وشي له نور چا سره به نه کا قيل و قال څوک
چي په اصل کي خدای نه دی پيدا کړی تروبه څه غواړي د ستا د مخ مشال څوک
سر خروئی دهرسړي په جگر خون ده نه هغه چه په سر واچوي سور شال څوك
مخ روڼی دي د عاشق په خپلو اوښکو په دانه شي چه ئي مړي په رويمال څوك
سړی بويه چه په نيك عمل نازيږي نه چه ناز کا د دنيا په ملك و مال څوك
د دنيا چاري فاني دي مرد هغه دی چه نظر کا په حرام و په حلال څوك
هر چه کر کا د اوربوشو غنم غواړي له خاطره دي بيرون کا دغه خيال څوك
سړی بويه چي په نيک عمل نازيږي نه چي ناز کا د دنيا په ملک و مال څوک
که ئي شعر د رحمان مهمند تر غوږ شي غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال څوك

زه لارغه د ستا په مينه کي شهره يم نه چي نن کاندي خبري پردي خپل څوک
ما دا يو سر دی دا ستا شکرانه کړی که د سره ماغزه مي خوري په دا ويل څوک

۶

که په بخت کم بختان نه وای خسته دل څوک په حضور به له تا ولي بيليدل څوک
و ديدن و ته دي هرچا رضا کيږي ولي حکم بې له تا نه لري بل څوک
که يې لاس د خدای په چارو رسيدلای بې مقصوده به يو دم نه سهيدل څوک
دا يو سر دی ما دا ستا شکرانه کړی بر ناحق مي ويروي په سر وهل/سرو دل څوک
دا همه شوميت زما دی چي رارسي ګڼه ته او د چا زړونه بدول څوک
دديدن په طمع وغولېدم بندي شوم څوک ګڼه زه او د هجران سختي زغمل
په هېڅ رنګ به دي له ميني منکر نه شم هرشان قصد چي مي کوي په قتلول څوک
که مي زړه ستا دمينی نه وای راپېرودی څوک په رضا له سره کله تېرېدل
که اثر د محبت ورسره نه وي څوک روغ صورت دا هومره زړه زهيرېدل
که په مينه د ليلی مبتلا نه وای غرونه څنګل څوک (دا) غريب مجنون/خوار مجنون په دې بيديا
مينه هره بلا کاندي (که باور کړې) ګڼه زه عبد الرحمان هومره ويل څوک

## گ

١

زغره واغونده ملا وتړه په جنگ　　یا ځان وگڼه په خپلو وینو رنگ

و بې ننگ وته د ننگ خبرې مه کړه　　نور هیڅ نه وینې کوهی وي که گړنگ

ننگیالي چه یو ځل مخ کا په یو لوري　　چه څراغ په نظر کیوزي د پتنگ

هیڅ له ځانه له جهانه خبر نه وي　　د اور پښتي و آتش وته غورزنگ/سمندر کا مدام اور وته آهنگ

د بلبلو و چمن وته پرواز وي　　یو لحد دی هنرمندو لره تنگ

که جهان و بې هنرو ته فراخ وي　　چه یکسان وي په کښي لعل و مردار سنگ

هغه ښهر جوهري لره زندان دی/وي　　څه به زیست کا څوك په خوله کښي د نهنگ

آسمان زمکه دواړه ژامې د نهنگ دي　　غم ښادي دي د دې دهر څنگ په څنگ

په ښاد ئي هیڅ ښاد مه شه که دانا ئي　　تیر به نه کا په دا دور کښي یو درنگ

که رحمان د هغو تللیو وصال مومي

دغه پَسه معرکه کوه د ننگ

## ل

خراب دل مي بهي غواړي بلا دا شوه　　چي بهي را معلومېږي کال په کال

١

ایښی مي پر سر دی ستا د مخ د میني　　بیا می تور لیمه دي ستا د زلفو تور سنبل

ته چه آئینه په لاس کښي واخلې حیرانیږې　　زه له کومه راوړم صبوري او تحمل

گرزې په چمن کښي منگول ډکه په گلونو/وړې د گلو　　خدای زده چه گلونه وړې که زړونه په منگول

هم مي مښک لیدلي هم عنبر دي په جهان کښي　　شاباش شاباش شاباش ستا په/د زلفو په کاکل

نه به ستا د مخ په څیر گلشن وي چا لیدلی　　نه به وي زما په څیر آهونه د بلبل

هسي تغافل کا ستا په جور و په جفا کښي!　　خلق حیرانیږ ي د رحمان په تغافل

٢

چه په سترګو مي ونه ليده ساحل    حيف دی دا چه نه عالم شوم نه عامل
رقيبان ئي را پسې کړه/کړل محاصل    چه رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل
دا همه واړه په ما کړه خدای نازل
٣

مه غوږ باسه د نا اهلو قيل و قال    پکار نه دی قيل و قال د بد سګال
يا به فخر په خپل‌اهل و په نسب کا    يا به فخر کا په آل و په عيال
يا به ذکر د لذت او د زينت کا    يا به فکر کا د مال او د منال
يا به هسي پوچ ګويي کاندي آغازه    چه مضمون ئي نه مردار وي نه حلال
د دانا او د نادان صحبت دی هسي    لکه ګډ شي وبله لعل و کوتي/تی لال
لکه لعل او کوتي/تی لال چه وبله ګډ شي    يا صحبت شي د عيسي او د دجال
هغه عمر چه تيريږي بې هم جنسه    ترو به څه وي د هغه عمر احوال
د دنيا چارې فاني دي مرد هغه دی    چه خبر شي په ثواب او په وبال
اباسيند لا څه محال لري په تله کښي    د دنيا د چارو هيڅ نه وي مجال
د دنيا چارې په مثل خواب و خيال دي    ځوك به څه کا اعتماد په خواب و خيال
لکه مال و مُلك په خوب کښي ور ځرګند شي    خو چه ويښ شي نه ئي ملك وي نه ئي مال
لکه څګ چه د اوبو په سر ليده شي    که ئي واخلي هيڅ ور نه شي په چنګال
لکه دود چه غرونه ځرګنديږ ي    تار په تار شي په يوه نري شمال
لکه يخ چه د سړو په زور شي جمع    هيڅ ئي نه وي د آفتاب په مخ مجال
يو ساعت باران بيا شين آسمان شي    لکه ابر د پسرلي د پشه کال
په يوه ساعت ئي ساز بيا ئي ويران کا    خاوري خښې دي په لاس کښي د کلال
د مجاز په معشوقو کښي وفا نشته    ما هزار ځله وکښلی دی دا فال
اعتماد ئي په ښاد و په غم مه کړه    نه ئي هجر په قرار دی نه وصال
ګاهي تور کودی په مخ باندي را کيښ شي    ګاهي را کيښ شي په مخ باندي رويمال
لکه مالګه چه خوك کيږدي په اوبو کښي    زه هم هسي سر زده يم په مثال
چه د مرګ و تاخت و باخت وته نظر کړم    صورت وينم د ميږ ي په څير پا مال
خراب دل مي بهي غواړي بلا دا شوه    چي کهي را معلوميږي په هر کال

که وصال مي د یار بیا موند هاله سیال یم    ګڼه نه یم زه رحمان د هیچا سیال

۴

بیلتانه دي هسي خوار کړ زما دل    چه له ځانه ئي ویزار کړ زما دل
لاس وپښې د خلقو نیسي دعا غواړي    میني هسي منت بار کړو زما دل
بې سببه چا آزار موندلی نه دی    تا په څه سبب آزار کړو زما دل
عاشق همره داغونه دي پرې ایښي    چه تمام ئي لاله زار کړ زما دل
چه د زلفو په کمند سره دي را کیښ    په بلا دي ګرفتار کړو زما دل
ستا چشمانو په کښي هسي مقام ونیو    چه له غیره ئي ویزار کړو زما دل
زه رحمان خو منت بار د عاشق یم    چه مین ئي په دلدار کړو زما دل

۵

چه له نازه پوشیده لري چشمان خپل — کله اسم د چا اخلي په زبان خپل
چه ښکنځل راته په قهر قهر کاندي — عاشق کښيباسي لاسونه په ګريوان خپل
ګفتګو په اشارت کاندي له نازه — چه د حسن رخت څرګند کا په دکان خپل
په ګريبان باندي چه ټک وهي غوټ! — خود پخپله سرفرو کاندي په ځان خپل
خريدار ئي له حيرته بې شعور شي — ګويا لوبې کا په دين و په ايمان خپل
چه خپل مخ په آئينه کښي ور څرګند شي — ما ليدلي دي پخپله مطلوبان خپل
چه هر څوك ئي عاشق وته هوس كا — چه په اور باندي ئي وسوه خان و مان خپل
هيڅ صرفه د چا په سر و په مال نه كا — 
مجنون ملك د عاشق هاله خپل کړو — چه هيڅ نه ويني په سترګو سود او زيان خپل
دا مقام دی د هغو رنګه عالمو — 
آفرين د عاشقانو په همت شه — چي ور تير تر سر او مال ويني جانان خپل
هيڅ د سترګو غړولو خوند ئي نه وي — 
څه به ويني مقتولان و مظلومان خپل — چه رحمان په سترګو نه ويني جانان خپل
دا لا وګڼي په ما باندي احسان خپل

۶

تور ليمه مي د فراق په ژړا سپين شول — دوباره د زړه په وينو کي رنګين شول
ما وې زه به لا ديدن کړم د يارانو — خبر نه يم چي ياران په کوچ تعيين شول
چا پتنګ غوندي ځان واچول و اور ته — څوک ژوندی لکه بلبل په آتشين شول
و مرده وته د مرګ خوار شوې پيښې — او ژوندي په زندګ کي اندوهګين شول
د قضا سپاهيانو هسي لاس په تاخت کړ — چي پايمال هزار خسرو هزار شيرين شول
چي قدم يي په آسمان ايښود له نازه — هغه هسي ناز پرور زير زمين شول
چي مدام يي په سنجاب دپاسه خوب کړ — اوس په ځمکه بې بستره بې بالين شول
د رحمان خاطر به ولي پريشان نه وي — چي پريشان ورڅخه جمع همنشين شول

**م**

۱

ګرځي عکس د ګلفام
په آرزو د ګل اندام
نه باده لرم نه جام
ما و نه ليده آرام
ورپريوځم/ښوئيږم په هر ګام
زه غلام يم د غلام
دا ناکام دی زما کام

که نيك نام يم که بد نام
ملامت د خاص و عام
د خپل يار د خولي دشنام
دغه خپل دعا سلام
تر کشمش و تر بادام
چه ئي را کاندي سلام/پيغام
رحمان وليده تمام

٢

که مي ونماځي ساقي په يوه جام
بس/ښه دی ما لره دا فيض د شرابو
مى خواري که په عالم کښي بدنامي ده
په ميزان يو سر لعل وي بل سر کاڼي
عاشقان د سپين رخسار د تورو زلفو
په مجنون باندي قلم راغلی نه دی
حلال عشق دی په رحمان باندي راغلی

تر دا هور ته به نور څه وي احترام
چه پرې ووينځم دا دلق ازرق فام
ما تر پښو دی لاندي کړی ننګ و نام
مساوي ده عاشقي په خاص و عام
څه پروا لري د کفر د اسلام
که حلال ئي په مخ ورشي که حرام
په حلالو کښي مدام وي احترام

٣

و محمود وته نظر کوه مدام
د نيکانو مدعا خو نيك عمل دی/وي
چه د زړه حضور ئي نه وي په لمانځه کښي
چه مجنون غوندي په مينه کښي صادق وي

هم نغمې کاندي هم رقص کا هم خاندي
چه غلام کړ خپلې ميني د غلام
ساعت نه ګوري که صبح وي که شام
پکار نه دی مقتدي وي که امام
رحمان وايم/وايي په هغه باندي سلام
د رحمان په شعر ترکې د باګرام

۴

د هجران له ډيره غمه ولي نه مرم
چه يو يار له بله ياره جدا کيږي
چه هرهر/په هر سحر زما په ژړا خاندي
يار چه يار په سترګو نهويني خو مرګ دی
چه په لره ګرم شا کاندي و ګل ته
چه د مرګ خوار په خوا لرې رحمانه

له دې هسي رنګ ماتمه ولي نه مرم
د دې دهر له ستمه ولي نه مرم
له دې هسي صبحدمه ولي نه مرم
ترو زه بې خپل صنمه ولي نه مرم
له دې بې وفا شبنمه ولي نه مرم
لا پخوا تر دغه دمه ولي نه مرم

که د یار له لاسه غشي د خدنګ خورم | زه د یار دجفا زهر/کوځې خاوري په دا رنګ خورم
همیشه په تندي توره د فرنګ خورم | بې له یاره که همه لاچي لونګ خورم
مهینې نه د بهلول نه د اورنګ خورم | چه په بلو لنبو/لمبو/لمبه ځرخ لکه پتنګ خورم
ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم | د هجران په غم کښي لپې لپې بنګ خورم

۶

سر مي په کار نه دی چي يې ستاترسر قربان کړم زر راځخه نشته چي يې ستا په پښو ړېران کړم
کار د عاشقۍ اول ډېر راته آسان ؤ | اوس هسي حیران یم چي دا کار به په څه شان کړم
ډېرو خلقو لافي ستا دمیني دي وهلي | هیڅوک هسي مه شه لکه زه چي يې په ځان کړم
نه لري مرهم د عاشق زخم بې تسلیمه | دا څه هسي درد نه دی چي يې دفع په درمان کړم
نه کا هیڅ دښمن په دښمنانو هسي چاري | ستا په عاشقۍ کی لکه زه چي يې حیران کړم
ولي کافر نه وي مسلمان به شي که خدای کا | هرچاته حسن ولطافت د ستا بیان کړم
وړاندي وي که ورستو آخر هسي معلو میري ستا له بېرحمۍ به زه رحمان لاس په ګرېوان کړم

۷

زه دا هسې دیوانه او مجنون چا کړم | لیونی د خپل نګاه په افسون چا کړم
نه پوهیږم چه دا چاري په ما څوك کا | ډوب شهید غوندي په خاك و په خون چا کړم
کومې سترګې کوم با ښه کومه غمزه ده | په فتنو د تورو سترګو مفتون چا کړم
توان توفیق خو د فتنو را څخه نه ؤ | چه دا هسي رنګ زبون و محزون چا کړم
رحمان هیڅ له خپله ځانه خبر نه یم
له رواجه له رسومه بیرون چا کړم

۸

صبح و شام مي لاس نیولي دي دعا کړم | خواست له خدایه ستا د مهر و د وفا کړم
هیڅ دروغ رښتیا مي نه زده که باور کړې | ستا دپاره هم دروغ و هم ر ښتیا کړم
واړه ته يې خندول که ژړول کړې | زه پخپله نه خندا کړم نه ژړا کړم
که ته نه يې باري وایه راته څوك دي | زه دا هسي سرتور سر پښې يبلې/لیونی ومجنون چا کړم
خوب خندا د بیلتانه په زمکه نشته | څه آرام به په دا دشت کربلا کړم
هره ورځ چه مي تیریږي ستا په غم کښي | زه په هره ورځ پوهیږم چه غزا کړم
یو ویښته مي د صورت کوږ شوی نه دی | هسي رنګ دي پټ پنهم په زړه ادا کړم
زړه که یو وي ما خو تا لره درکړی | مګر نورو لره نور زړونه پیدا کړم
چه مي واغوست سر و پای د عاشقۍ | زه رحمان دي سروپای بې سروپا کړم

که څوك را کاندي دنيا و عقبی دواړه
څو مي تيغ په پهلو نه دی لګيدلی
که يو ځله مي ستا زلفي په لاس
کښيوزي
که مي چيري لاس د ستا په بوسه بر شويو ويښته به دي په درست جهان ور نه
څو ونه وينم ستا سترګې که يي خدای
کا
معشوقې د عاشقانو دين ايمان دی
ستا تر زلفو پوري نورې زلفې څه دي
په رحمان دا ستا د لبو مې حرام دی

دانسته به دغه سود په زيان ور نه
کړم
عاشقي به دي په اين و آن ور نه کړم
ستا پهلو به و رقيب آسان ور نه کړم
کړم
دا نعمت به د جنت په خوان ور نه کړم
عزرائيل لره به هُمره ځان ور نه کړم
زه به چا لره خپل دين ايمان ور نه کړم
په خاشاك به د چمن ريحان ور نه کړم
څو د خپلو وينو جام تاوان ور نه کړم

١٠

دا يو څه رنګه ژوندون دی نه پوهيږم
جام د لبو/ميو چه د ځان په وينو مومم
د پتنګ او د بلبل تر ميان حيران يم
په شانه سره دي تار د زلفو بيل شه
عشق په هسي رنګ مقام باندي قائم
کړم
د خپل زړه و علامت وته حيران يم
د رحمان څيره/چهره ئي زيړه تر
کنګو/زعفران کړه
خواب و خيال دی که افسون دی نه
پوهيږم

ترو زلال که جګر خون دی نه پوهيږم
مخ دي اور دی که ګلګون دی نه پوهيږم
که غوځ شوی مي نارون دی نه
پوهيږم
چه وصال دی که بيلتون دی نه پوهيږم
چه موسی دی که قارون دی نه پوهيږم
خدای زده عشق دی که طاعون دی نه
پوهيږم

١١

بيا دي نوي شراب څښلي دي پوهيږم
که هزار ځله لاس سره کړې په نکريزو
معرکه زما د مرګ نه ده نو څه ده
څه حاجت دی چه دي خط په ملا لولم
ته خپل جور و جفا څه وايې و ما ته
چه رقيب او تا غوږونه و بله وروړه
رقيبان ځکه تيری په رحمان کاندي
په رخسار دي ګل کرلي دي پوهيږم

تا زما په وينو وللي دي پوهيږم
رقيبان چه تا بللي دي پوهيږم
چه زما په باب دي کښلي دي پوهيږم
ما همه واړه ليدلي دي پوهيږم
ما هغه ساعت ژړلي دي پوهيږم
چه تا خوا/تا په خوا پوري نيولي دي
پوهيږم

١٢

چه د تن له سرایه درومې توښه واخله    دغه هسي غم دي هير دی په کوم غم
د دې لارې تله څه هسي آسان نه دي    که يو ځل در باندي راشي دا ماتم
که دي ويره شي له ظلمه له ستمه    مفت مونده شي نن ساعت هغه مرهم
که اميد لرې له رحمه له کرمه    چه لا نه ئې د اجل په تيغ کړم
له هر چا سره چه کړې هغه به مومې    تر دا سرای په هورته سرای نشته محکم
اجر واړه د عمل په اندازه وي    مشکلات دي په هر دم په هر قدم
اوس د ستا رضا نيکي کړې که بدي کړې    ته هم مه کړه په هيچا باندي ستم
خدای د رزق په زيرمه مه هيروه کلك شه    ستا هم بويه په هر چا باندي کرم
که ګڼې چه په حرص سره څه زيات شي    د هيڅ تخم ميوه نه درومي برهم
که هزار رنګه تالاش و تردد کړې    دغه دواړه سره يو دي هم درهم
ډير هوا و حرص مه کوه خدای ياد کړه    نيك و بد دي دواړه کښوی شي په قلم
په تا فرض عبادت د خپل ښتن دی    تر سړي دسړي رزق دی مقدم
ټوك (ډوډۍ)روټۍ يوه شړۍ درلره بس ده    زيات به نه شي د يوې ستني تر سپم
    د قسمت شوي به نه کړې زيات و کم
له خوراکه غرض قوت او لا يموت دی    دی کافي دی د عرب و د عجم
له پوشاکه غرض خپسر/خپلسر پټول دي    نه لښکرې خزانې نې ملک و حشم
که حرص در باندي زور شي مرگ را ياد کړه    نور همه واړه اسراف دی مسلم
    نه چه غوښې غوړي وريجي يا غنم
د لحد د تاريکۍ علاج به څه کړې    نه اطلس و سقلات تاج و علم
غفلت هيڅ مناسب نه دی د سپين ږيريو    دا علاج دی دغه رنځ لره محکم
مار چه سوړې لره ورشي ګوره سم شي    چه ته دلته کښې ويريږې په تورتم
    خوب روا نه دی په وقت د صبحدم
خم قامت د دنيا کار کړې عمر واړه    ته د ګور په غاړه راغلې نه شوې سم
ځان پخوا تر هغه وژاړه که مرد يې    او په دوه رکعته نفلو نه شوې خم
نور عالم چه په تا ژاړي انصاف وکړه    چه په تا باندي ژړا کا نور عالم
که زه نه وايم ته خود سترګې روڼې کړه    بې انصافه ته په څه يې خوش خورم
    کور دي خور شه ته چارپای ئې که آدم
اې رحمانه لکه ته چه په خدای ګرم يې    بل به نه وي په جهان کښې هسي ګرم

پس له مرګه به دي هورې هم خانه وي    څه پوهېږې يا به مار وي يا لړم

١٣

ځو به موم د نمر و مخ ته ګرځومه
زه په دا کار کي هيڅ عذر نلرمه
زه دا لافي په دروغ څه رنګ وهمه
حق به ولي په باطله بدلومه
زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرمه
ترو له فرضو غاړه څه رنګ غړومه
دانسته خپلسر و اورته اچومه
زه رحمان په جهان سترګې غړومه
په هر لور چه مي را کاږي پسي ځمه
بادشاهي د ګدايانو په دعا شي

۱۴

په يوه غمزه د سترګو ئي فنا شوم
ما د يار له غمه دم وهلی نه دی
سر ترپايه بې بنياده بې بقا شوم
ښه چه تن مي توی تومنه شه په عشق کښي
که مي دم وهلی نه دی هم رسوا شوم
هاله ځاځکی د شبنم وم اوس دريا شوم
زه د يار و مخ ته ګورم يار و ما ته
چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم
په هجران کښي که ګدا وم کند په غاړه
په وصال کښې ئې بادشاه د امرا شوم
په خپل کلي په خپل کور کي مي غربت دی
په صدف کي يتيم دُر غوندي يکتا شوم
رحمان ځکه په وګړيو کي رسوا شوم
مستوري راځخه يووړه مستو سترګو
زه رحمان ځکه بادشاه يم چه ګدا شوم

۱۵

د خپل ځان له خاکسار (نه) بلند شوم
لکه ګرد هسي شهسوار د هر هوا يم
کمين هسي کامل کړم چي زه درومم لکه ځمکه درست جهان راسره بيايم
ماچي خپل معراج د دار د پاسه وليد
د منصور په څېر رښتيا وينا (به) وايم
د منصور او زما هومره تفاوت دی
چي ده نارې کړې په جهر زه خفيا يم
له عيانه هيڅ حاجت د بيان نشته
زه رحمان به په خوله څه وايم چي دا يم

۱۶

تر هغه حده په هورته بد سړی شوم
خو يو زه په دغه بار کښي کوږ لرګی شوم
دنيا واړه خپله زيست و روزګار کاندي
تمامي جهان لمن راځخه نغاړي!
سپين زړوکی مي اغوستي تور کودی شوم
هيڅ حاجت د هنر نشته و نصيب ته
د نوح زوی هم د يو نيک نيکه لمسی ؤ
غزا وشوه که مهمند که/يا داودزی شوم
کل وسواس له احتياطه پيدا کيږي
ګڼه زه هم د يو نيك نيکه نمسی شوم
اوس عطا د آدميت راباندي وشوه!
زه له ډيري هوښيار نه ليونی شوم
چه د درست جهان په سترګو کښي اغزی چه رحمان د هغه يار د کوڅې سپی شوم شوم

۱۷

۵-قناعت مي تر خرقې لاندي اطلس دی
آئينه غوندي بې رويه بې ريا يم

۶-د غنچې په څير په سل ژبو خاموش يم
پټ د درست جهان پادشاه ظاهر گدا يم

په ژړا مي د خپل يار ديدن حاصل کړو
لکه بوئ هسي په پټه خوله گويا يم

۴-هم په دا سپينو جامو به معلوميږم
د شبنم په څير  له  گل سره يکتا يم

۳-دراز عمر مي حاصل شه له راست
لکه ابر هم گوهر يم هم دريا يم

که چا لار د عاشق وي/ده ورکه کړې
لکه سرو مدام سبز و تازه پايم

په نرم لکه اوبه د اور سزا يم
زه رحمان د گمراهانو رهنما يم

۱۸

زه له دې دنيا نه تلوني په شتاب يم
لکه پاڼه د خزان پښه په رکاب يم

که هزار آبادي کړمه په جهان کښي
غرض دا چه نهايت خانه خراب يم

که مي اصل د حياتو له اوبو  دی!
بيا خو دا چه د اوبو په سر حباب يم

دا جهان قصاب خانه کړه خدای و ما ته
پای بسته ولاړ په غولي د قصاب يم

چه د خدای له معرفته خبر نه شم/شوم
معلوميږي چه يا ديو يم يا دواب يم

که صورت مي دسړي دی زه ئي څه کړم
په معنی کښي د چارپايو په حساب يم

لکه بت چه په رڼو سترگو اوده وي
هسي زه په بيدار کښي وړی خواب يم

په طاعت په عبادت  مي  زړه يخ  نه کړو
هميشه د معصيت په اور کباب يم

سر د خدای و عبادت ته ايښوي نشم
مدام ډوب د گناهونو په درياب يم

چه و خپلو گناهونو ته نظر کړم
سزاوار د هر عذاب و هر عِتاب يم

لکه څوك چه په خره سور وي مخ ئي تور وي
زه هم هسې پخپل خدای/تر څښتن  پوري بې آب يم

 غزا وشوه که گفتار لرم/کوم په ژبه
زه رحمان چه کردار نه لرم کذاب يم

۱۹

که هزار ځله نزدې د زړه په ياد يم
که يار سل ځله وعدې د وصال وکا
په جفا و په وفا ئي لارغه نه شي

د بې نيازو په نياز څه اميد د کړو دی
زه چه يار په سترگو نه وينم نا ښاد يم

که د يار له لاسه اور را باندي بل وي
زه له ډيري تلوسې بې اعتقاد يم

بې مينې قراري را باندي زوگ دی
پُر حذر د ناز پرور په کړي داد يم

که همه عمر مي يار په غيږ  کښي ناست وي
زه پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد يم
لکه شمع مستقيم په خپل اِستاد يم

يو زمان  مي  د  زړه  مراد  موندلی  نه دی
شپه او ورځ په حرکت کښي لکه باد يم
زه له غمه به د هجر په فرياد يم

د وصال په يوه کال مگر بر  پای شم
پيدا کړی خدای په اصل کښي نا مراد يم

چه ئي نوره نتيجه نشته بې غمه
د هفتې په هجر هسي بې بنياد يم

په وصال کښي مي د هجر طمعه  نه وه!
حق حيران  د  عاشق  په  دغه داد يم

بې له  عشقه چه مي پړی شه د پوزې
اوس حيران متحير په دا فساد يم

که مي پيري که مي پلوري چاره نشته
گڼه نور له جملگي قيده آزاد يم
زه رحمان د ښايسته و خانه زاد يم

۲۰

خوشحالا و دولتا مي غلامان دي

که مي څوك په فقيرئ شميري فقير يم
که مي څوك په اميرئ شميري امير يم

د دلبر و صدقې لره ئي غواړم
هسي نه چه په دنيا پسې زهير يم

د خرقې خدمت مشکل دی او که نه وي
زه هر دم و دغه چاري وته خير/ځير يم

هم پند اخلم هم پند وايم و هر چا ته
زه د ځينو يم مريد د ځينو پير يم

په هجران کښي خيال د يار را سره مل دی
په زندان کښي د يوسف سره اسير يم

په خندا کښي مي ژړا ده لکه شمع
له عالمه پټ پنهم د ځان په وير يم

آزادي تر دا په هورته بله کومه/نشته/نوره څه ده؟
چه مدام په خپل اشنا پسې زهير يم/ بندي د يار د زلفو په زنځير يم

چه هميش په غوږ ناريې د هجران اورم
رحمان ځکه خپل يار و مخ ته ځير يم
زه رحمان په پښتو ژبه عالمگير يم

۲۱

زه د يار په درد و غم کښي غرقاب خوښ يم
په دا درد/اور کښي بې طاقت و بې تاب خوښ يم

که ډوبيږم په اوبو که په اور سوزم
د سرو شونډو په آتش و په آب خوښ يم

چه د يار دخط و خال ښنې پکښې وي
زوړند سر په مطالعه د کتاب خوښ يم

تر دا پوچه گفتگويه چه ئي اورم
په نغمه په ترانه د رباب خوښ يم

د ريا تر ناقبوله عبادته
د ساقي په ميو مست و خراب خوښ يم

چه نه علم نه تسبيح نه تلاوت وي
له دې هسي بيداريه په خواب خوښ يم

د طوبی د ونې سوری مي خوښ نه دی
ستا د مخ په لنبو سوی کباب خوښ يم

خاموشي که هر څو لويه مرتبه ده
زه له يار سره په سوال و جواب خوښ يم

د يار ډيرې غمخوار يم عاجز کړی
رحمان ځکه په خوردن د شراب خوښ يم

لکه دُر و لعل په غاړه د خوبان یم    د افلاس په کبل ډکی د خزان یم
د دونه□ په غاړه ناست شاه جهان یم    د دې نور جهان په سر لکه آسمان یم
شپه و ورځ لکه آفتاب په لار روان یم    خلقو واورئ زه هغه عبدالرحمن یم
ړلی سر په لویه لار د هندوستان یم    زه رحمان د خدای وکړو وته حیران یم
لکه بې مال و متاعه تش دکان یم

۲۳ چي هر دم له خپله ځانه ګریزان یم    هم په دا لکه دریاب د درو کان یم
مرګی تریخ دی چي ژوندون دچا شیرین شي زه خورسند د یار تر وصل په هجران
یم
ناداني مي دانایي شوه لکه طفل    په ناپاکو ګوهره کي پاک دامان
یم
چي د نفس د حرص ملک مي مسخر کړ    په هوا دپاسه تخت د سلیمان یم
تن مي څه کړې چي زړه یاررا څخه یووړ    بیهوده د خالي خوني نګهبان یم
لکه ګل چي په نار مات کړې اویزاند وي    زه هم هسي د ژوندو دمړو تر میان یم
کله ځان راته ولي کله عاصي شي    نه خبر په خپل کمال نه په نقصان یم
خپل جانان مي هسي نقش دی په زړه کي    نه پوهیږم چي رحمان یم که جانان یم
۲۴
ژوبل ژوبل د خوبانو/ترکانو په نګاه یم    د رقیب علاج آسان دی بلا دا شوه
چه یوسف غوندي هزار په کښي پراته دي لا تر دې نه زیات غوځیږم چه پناه یم
چه ئي قد و قامت ووینم په سترګو    بندیوان د هغه سیب ذقن په چاه یم
د سپین مخ د تورو څڼو له رغبته    عندلیب په سر د سروې د خپل آه یم
لکه څوک چي په خره سپور وي مخ یې    منت بار د هر سفید د/او هر سیاه یم
تور وي    زه هم هسي تر خپل خدای پوري روسیاه
د رقیب خبرې وړم د یار دپاره    یم
ښاخ د زلفو ئي پخپله خدای راټیټ کړو    دعا ګوي هم د نیك خواه هم د بد خواه یم
بې له عشقه که مي عیب که مي هنر دی ګڼه زه د یار تر قد پوري کوتاه یم
ځان هر ګوره ناکاره را څرګندیږ ي    نه خبر په عبادت نه په ګناه یم
بې صبر□ که یار په وصل کښي مهجور    له هغي ور ځې را هیسي چه آګاه یم
کړم    د پسرلي په مرغزار کښي وچ ګیاه یم
له اوله ټېر ووهم بیا آه کړم    په نارو نارو خروس د صبحګاه یم
په جذبو جذبو ئي را کښوم/ښکم و ځان    هغه یار مي کاهربا دي زه ئي کاه یم
ته    زه هم هسي بار تړلی سر براه یم
لکه بار د ونې پوخ شي ځني رژي    خوځیدلی تر چهل و تر پنجاه یم
اوس مي ځای په دا جهان کښي پاتي نه    زه رحمان له خپله یاره ناویسا یم
شه
۲۵

که له غمه دي و نه مرم هاله وایه! نور خبر په تماشا د عالم نه یم
زړه مي ستا په غمزه غوڅ دی غزا وشوه منتظر د یوې ستني تر سپم نه یم
سم قامت لکه الف یم په راست کښي زه په واړو کښي اول یم دویم نه یم
خم د زلفو یم محراب دکړو وروځو چه یا دیو یم یا دواب یم آدم نه یم
که مي کم و بیش له لاسه واقع کیږي که په لاس او په پښو روغ یمه ګرم نه یم
زه رحمان د بیلتانه له غمه/لاسه ژاړم لکه غشی څه فساد لره سم نه یم
بې غم ستا له ذکره فکره یو دم نه یم زه/څه د مار و د لړم په څیر خم نه یم
زه زائر د بتخانې د حرم نه یم یم سړی شکم لرم بې شکم نه یم
بې تا خوښ په تماشا د ارم نه یم واقعه ده ډیره ګرانه هیڅ ګرم نه یم

ن

١

هسي تيز درومي دوران — ګويا برق دی درخشان
د آسيا په څير ګردش کا — په زمين باندي آسمان
ککر دي د سړيو — چه وړيږي تر دا ميان
پيدا کيږي فنا کيږي — نه ئې سر شته نه سامان
نه ئي حد و نه پايان شته/نه يې سر شته نه ئې حد شته نه ئې پايان
نه سامان — ځني وير کا د خپل ځان
ځني ډول وهي ښادي کا — ځني ګل غوندي خندان
ځني شمعه غوندي ژاړي — که ئې ګورې يو بيابان
که يې ګورې يو ګلزار دی — که يې ګورې يو زندان
که يې ګورې يو ګلشن دی — چه ئې هيڅ نه شي بيان
يوه هسي تماشا ده! — په دليل و په برهان
کيفيت ئي موندہ نه شي — يا ئې چيرته دی مکان
چه ئي کومه خوا رفتن دی — هيڅ خبر نه دی رحمان
خدای خبر دی په دا علم

٢

ډير ياران وو د ګل خان و جمال خان — پکار نه شه يو په وقت/وخت د زارستان
د همه واړو يارانو مخ دي تور شي — که به څوك وبله ياري کا په دا شان
چه يو يار په سيوري پروت وي بل په اور کښني — وهغو ته به څوك څه وائي ياران
هيڅ تعريف يې په دا ژبه وايه نه شي — صد رحمت شه په يار هم د ګل خان
تر دا په هورته/په دا هورته د يار شرطونه څه وي — چه په اور کښي دواړه وسوزي يکسان
خدای دي نه کا څوك دا هسي مظلومان
چه له آله له اولاده سره وسول — ما ليدلي نه وو هسي مخلصان
چه په اورکي يو د بل دپاره سوزي — چه ئي مړ نه کړو د اوښکو په باران
څه رنګ شوخ و هغه اور و هغه خلق — چه انسان کا هسي ظلم په انسان
الغياث دی الغياث دی الغياث دی — چه ئي اچول و اور وته نبيان
د نمرود چارې مي وليدې په سترګو — چه نه زمکه په نارو شوه نه آسمان
هم دې زمکي هم آسمان ته تعجب کړم — چه ونه لوښته له وېخه سر غلطان
هم دې لويو لويو غرونو ته حيران يم — چه اوبه څښي يا خواړه خوري په جهان
له دې خپله سپيه نفسه مي زړه بد شه — وليد ما په يکشنبه په دا دوران
عالم وايئ چه قيامت به په جمعه وي

هزار حیف دي چه دا هسي رنګه چاري          مکاري د زمانې څه هُمره نه ده
سر بند نه ؤ ګویا دښت کربلا ؤ          واقع کیږي د دنیا په سود و زیان
په عیسی و په دجال کښي ګناه نشته          چه سیلاب شو د سرو وینو پرې روان
عزیزان ئي ځبله ووژل پخپله          دا مکرونه دي د نفس و د شیطان
هسي نه چه دا ئي وکړه نور به نه کړي          دا همه واړه تقدیر دی د سجان
شاه عالم اعظم وګوره چه ئي سخا          چه ئي زړه شي هغه کاندي بادشاهان
کړ/څخا کړو          په خونونو واړه ملك د هندوستان
و دارا و اورنګ زیب وته حیران یم          چه ئي څه چاري واقع شولې تر میان
د حسن حسین غزا دي څوك په زړه          چه همه واړه په تیغ شول شهیدان
کا          بې حسابه هسي خلق شه طوفان
د دوي غوښي اوښکو وینو رغړولې          که سړی دی که پیری دی که حیوان
هر چه اهل د دنیا دي حال ئي دا دی          په دریاب کښي وبله غوښې خوري
آدم زاد په زمکه یو بل سره وژني          ماهیان
لکه غوښې چه ماهیان خوري په دریاب          په هوا کي هم دغه کاندي مرغان
کښي          همه واړه یو تر بل مشت و ګریبان
خزنده و پرنده دي د دې دهر          ځکه بیرته ځني ګرزي درویشان
مرداري د دې دنیا خو هم دغه ده          چه رحمان ئي چا ته وکاندي بیان
۳

دنیا دار د دنیا کار کا زه د دین          څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه
هیڅ کم نه دی تر سپین مخ د/مخیو          شي
دلبرانو          خوانین زما په ملك دي خوشه چین
مراد له تورو سپینو واړه دلبري ده          بلکه ښه دی زما شعرنمکین
مرتبه د سلیمان چه چا له ورشي          موقوف نه دی دغه کار په تور و سپین
چه رنګین رنګین مضمون پرې کښلي نه          هیڅ پوره نیمګړی نه دی په/پر نګین
وي          څه پکار دی د بیاض ورق رنګین
خوند په خوله دی نه په څکه/څښه نه په          آب و خور که د چا تلخ وي که شیرین
خواړه دی          څه حاجت دي په بستر و په بالین
غرض خوب دی که په خس وي که/یا په          خدای څوك مه کړه د بدانو همنشین
خار وي          د رحمان آشنا چنان دی یا/هم چنین
مصر تورہ هم په بد غلاف کښي زنګ
شي
۴

بیا پیدا شي په  یو دم کښي هزاران
لکه بحر چه بهیږي بې پایان
هم د هغه زده چه ورئي شي په ځان
دا دنیا یې ویرانه نه شوه په هجران
د چا یاد وي ماو تا غوندي سګان
بیا به نه مومم دارا و شاه جهان

چه دعوی ئي کړه د نام و د نشان
د خپل پلار او د نیکه په ګورستان
ګوره څه شوې هغه خولې هغه لبان
اوس دي غبږ در باندي وکا چه قربان
چه ئي اور بل شوی/کړی نه دی  په دیوان

۶

ته چه هسي ګاه یې ترش ګاه یې خندان
له احواله  دي  چا  نه  زده چه به څه کړې
رنځ راحت د عاشقانو واړه ته یې
هغه شونډي چه خوړې دي تر شکرو
رجوعات د ښایسته ؤ چا ته نه وي
دغه هسي رنګ ښایست لکه چه ستا دی
قصد تر هسي حده ولي کړې ګل رخه
د مریې صورت څه روغ له کاڼې نه وي
و هر چا وته چه ستا قوت رسیږي
ستا له  جوره زهره نه لري چه آه کا
خوار حیران لکه عاشق دی ستا له دره/درده
لکه ډیر وایئ د وصل راحتونه
د رخسار نښې دي واړه  د خورشید دي
له هوسه دي هر ګل کره خندا شوه
کله وي چه نصیحت کاندي  عاشق ته
رنګ د روی دي لري رنګ د سرو ګلونو
سیاهي د نوي  خط  دي  هسي  زیب  کا
و کوهي ته چه لغزش کا کل خطر وي
که د درو تجلي ده ډیره ډیره
ته سلطان د ښایسته ؤ یې دلبره
که دا نور ښایسته  ستوري ویل کیږي
له هر چا  چه اوریده شي  دغه وایئ
در و لعل شو ویل د رحمان څکه

له عاشق سره کینه کړې که احسان
کله جور کله لطف کړې عیان
دا  دروغ دي چه وصال دی یا هجران
له ښکنځلو ئي عار نه کا عاشقان
هرګز نه وي سرکوزي د سروې شان
نشته دا رنګه ښایست د هیڅ انسان
چه له ډیره نازه وژنې عاشقان
نشته کاڼې څخه ستا د جفا توان
هلته نه رسي قوت د درست جهان
که کشور د عاشقانو شي ویران
خدای دي هیڅوک هسي نه کا خوار حیران
دغه هسي د فرقت دی سخت زندان
چه ئې درست جهان له نُوره دی روښان
چه ئې ولید ستا دِ حسن ګلستان
که له حسنه دي آګاه شي زاهدان
تورې څڼې دي ښاخونه د ریحان
لکه ښکلي واړه توري د قرآن
کل خیریت دی کوهی ستا د زنخدان
دُر تاریك  شي چه  ظاهر شي ستا دندان
دا نور واړه ښایسته دي نوکران
ته خورشید غوندي صورت لرې روښان
چه ښایست دي زره نه لري نقصان
چه د ستا د لعلو شونډو شه ګویان

۷

چيرته ځلمي/زلمي جونه چير/چرته کونډي يتيمان — چيرته ملك د مصر چيرته ده د غلامان
چيرته پنځه ورځې چيرته عمر جاوادان — چيرته عزيز خان چيرته ملنگ عبدالرحمن

که له دره ئي شړې که ئي پريږدې ته

فراموش مي کړ/دی د ستا په مينه ځان — ځان لا څه دی بلکه عمر جاوادان
لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ يم — همره عيش و طرب نه لري شاهان
لکه زه چه ستا د غم پنډونه اخلم — همره پنډ اخيستی نه شي پهلوان
هسي بې سر و سامان يم ستا په عشق کښي — چه آ گاه نه يم په سر و په سامان
هسي بې شرابو مست يم ستا په مينه — چه خبر نه يم په/له زمکي په/له آسمان
دا به څه رنگ شي چه ته د کال وعده کړې — په ما نه تيريږي بې تا يو زمان
تمامي عمر د ستا په طلب ورك يم — لټوم دي په هر ښهر په بيابان
ډير مئين دی ستا په مخ عبدالرحمن

د سړي صورت څه روغ د کاڼي نه دی — نشته کاڼي څخه ستا د جور توان
٨

څو به شميرم زه غمونه د هجران — چه دا حال ورباندي نه وي ورغلی
د سړي د دښمن طاقت مي نه وه — همره ډير دي لکه ريگ د بيابان
لکه څوك چه د اوښ بار په ميږي کيږدي — خدای را پېښه د ښمني کړه د اسمان
لکه اور د بيلتانه چه په ما اوري — هسي زه يم په خپل غم پوري ناتوان
د يار غم به مي هغه سړی په شمار کړي — چا ليدلی گڼه اور دی په دا شان
که څوك وايئ حال دي څه دی په هجران کښي — چه شميرلي ئي ويښته وي د خپل ځان
نا قرار زړه/روح مي د يار په هوا والوت — په خاطر دي تصور کړي دوزخيان
د يار دم/ياد مي زړه په غېږ سترگو يووړ — تش صورت مي په ځاي پاتي شه پريشان
ما وې زړه د مومن عرش دی خبر نه وم — لکه بت په ديوال کښلی يم حيران
عاشق تر هغه حده بې هوښ کړم — چه به عشق زما دا عرش کاندي ويران
لور د لوره/په لور ئي د تهمت په غونډو ويشت شم — چه نه هوښ لرم نه صبر/سر و نه سامان
ملامت را باندي وايئ درست جهان
په ويل به څه گروهيږي د رحمان

لکه غم د آشناي په ما وريږي — ياد به نه وي د چا هسي گڼ باران
٩

د عشق اور راباندي بل شو خدای خبر دی | نه په وړاندي تلای شم نه په بیرته ګریزان
راشه عاشقي مه کړه رحمانه او که نه وي | هیڅ ویلي نه شي طبیبان و حکیمان
زه د عشق په اور کي سوی سرګردان
زه ئي هسي خوار کړم لکه خاك/شګې د بیابان | عالم واړه په فکرت تللی حیران
اوس رسوا شوم په عالم کي چاک ګریوان
دریغه/کشکې که په سر مي دا مشکل کا خدای آسان | تل په اور به ناست ئې که پادشاه ئې د جهان

١٠

خان سلطان د دې جهان | آخر درومي خوار حیران
د قضا په ځېل تړلي | په مثال د بندیوان
شیرین ځان ور ځخه درومي | نه ئي زور شي/رسي نه ئي توان
که ښندي مال و ملك واړه | هیڅ رنګ نه مومي امان

نه ئې مل نه ئې حامي وي درد ئې ورشي په خپل ځان
درمانده وته ولاړ وي وزيران او وکيلان
هيڅ دارو يې کړلی/کولی نشي کوز کوز ګوري حکيمان
بادشاهي ئې پاتې کيږي زړه ئې چوي په ارمان
چه ئې روح له تنه بيل شي نور پرې ژاړي فرزندان
يو ساعت وربانديې ژاړي آخر صبر کا/کړي خواران
بيا ئې غسل لره واخلي په تخته باندي عريان
په جامو ئې هوسيږي/خوشحاليږي مرده شوی او غسالان
چه له قبره ئې بازګشت شي مال ئې يوسي وارثان/ميراثيان
په مسند ئې دعوی کاندي هم دوستان هم دښمنان
سهيل به يې تالا کا/ئې تالا کاندي هغه خپل مصاحبان
نام نشان ئې هسي ورک شي لکه عين بې نشان
نه ئې نقش پاتې کيږي! نه ئې اسم په جهان
دا دنيا آب روان ده! نه شي نقش په آب روان
که هزار رنګ آبادي کا نهايت خانه ويران
لکه باد هسي به تير شي کاروبار ددې دوران
دا بيان دور و دراز ؤ کوته/کوتاه قطع کړ رحمان

۱۱

که پخوا تر آشنائيه وای بيلتون ما به نه ؤ له چا کړی پيوستون
چه مې يار په سترګو وليد ما ګمان کړو چه هم دا ساعت مي بيا مونده ژوندون
په نيمګړي داد خبر د فلك نه وم چه به بيا شي په ستنه را څخه ستون
نن ساعت چه له دې حاله خبردار شوم ځکه تر نن ورځې بهتره وه پرون
هر زحمت چه په ما راشي شکرانه کړم عاشق تر هسي حده کړم زبون
اوس که لاس زه وبله/پر بله مږم هيڅ سود نه کا هغه چاره چه له لاسه شوه بيرون
لکه نمر په ځلورم آسمان ځليږي محبت ئي له حجابه کړم بيرون
چا چه رخه/ښه له ښه مخه را کوله اوس دي سور په نيلي ګرزي د ګردون
په دا هسي حال کښي څه رنګ صبوري شي چه د ښمن دي کامراني کا ته محزون
که په صبر سره تور کاڼي لعل کيږي لعل ئي مه کړه/کړې په دا هسي جګر خون/شواخون
د دنيا هوس په ما باندي حرام شه د هوس هسي کړم شپه په ميږ تون
دريغه يو ځله هغه زما په حال شوای چه و ما ته لولوي صبر و سکون
و رحمان ته ځان هغه ګړ آسمان شي چه د ستا په غم کښي ناست وي سرنګون

**و**

١

هيڅوك مه شه ګرفتار د تورو زلفو / مه اسير شه په كفار د تورو زلفو

هم په شان د تورو زلفو به پريشان وي / هر چه كاندي انتظار د تورو زلفو

ثوك به څه غواړي قرار د تورو زلفو

د محشر په عالم كله قراري وي / ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو

څو ئي صبح د قيامت دميده نه شي / ګڼه نشته بل/نور انوار د تورو زلفو

مګر شمع د سپين مخ شي باندی بله / چه حلقې شي تار په تار د تورو زلفو

تار په تار كا د عاشق د خاطر خونه / څوك به څه كاندي انكار د تورو زلفو

چه تمام جهان ئي ښتی دی په دام كښي / كمندونه دي هزار د تورو زلفو

زه له كوم يوه كمنده سر وكاږم / چه پرې راشی دره دار د تورو زلفو

په تندي د محتسب كا دُره ماته / چه تسبيح كړه خدای زنار د تورو زلفو

هُمره زړونه ئي پيبلئ په هر تار دي / چه پيدا شه شهريار د تورو زلفو

ملك د هند و د حبش ئي واړه زير كړ / نشي هيڅ په زړه كي ډار د تورو زلفو

ښامارانو غوندي ګرزي په ګنجونو / په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو

كه بل مار چيچل په لاسو يا پر/په پښو كا / چه آغاز ئي كړ اشعار د تورو زلفو

د رحمان تر قلم مښک و عنبر(ووري) اوري / لكه ښتي (چي) وحشيان له مردمانو

٢

او ښكي نه لري حساب زما د سترګو / ما رحمان چه سترګې روڼي په خپل يار كړې

سياهي مي همه واړه سفيدي شوه

كه مي سره دي كه مي سپين دي كه مي تور دي / بې حسابه شه سيلاب زما د سترګو

چه رخسار د هغه يار را څخه پټ شو/شي / هسي پريولی شه كتاب زما د سترګو

اوښكو يووړ هر اسباب زما د سترګو

چه ګداز/ګوزار ئي په دا ګرمو اوښكو نه شه / حبطه شو/شي آب و تاب زما د سترګو

مګر كاڼي دی حباب زما د سترګو

چه مي نقش په زړه سرې شونډې د يار شوې / كان د لعلو (شؤ)شه ګرداب زما د سترګو

مخ د تركو دی آفتاب زما د سترګو

كه نور خلق د آفتاب په روڼا زيست كا / قدم نه بردي په ركاب زما د سترګو

ما ئي خيال لره ابلق د سترګو زين كړ / هسې وتښتيده خواب زما د سترګو

اوس محال شو/دی اجتناب زما د سترګو

چه حساب ئي نه په خوله شي نه په کښلو
نور څه نه کا بې کړو کړو وهلو
تیرې توري دي زما په قتلولو
سبا پوري کا نکریزي په منګلو
ما هیڅ فیض ترې/ځني بیا نه موند بې ښکنځلو
که تر باغ وتلی ښاخ دی د سرو ګلو
۴
ښایسته غُنچې ئي پرې یستې د ګلو
چه حیران یم د رحمان په خلاصولو

تا چه رنګ د میو ورکړ و لبانو
چه دي جوړه کړه لینده د کږو وروځو
چه دي اسم د ځنځیر په زلفو کښېښود
په رخسار چه دي د خط غبار څرګند شه
کاږه غشي واړه بیرته ځي له ښښې
چه زما د یار تر مینځه جدایي کا
که مي چیري خواست د خدای په در قبلیږي
سور پیزوان دي په سرو شونډو هسي زیب کا
د سرو ټیک دي شهزاده په جبین پروت دی
دواړه لیچي دي وکښلې مصر تورې

ستا له غمه په ځان زړه د رحمان سوزي
اور دي/یې پورې کړ په کور د می خورانو
خو/څو به ښکار کړې په حرم د غزالانو
معطر دي کړ دماغ د دیوانګانو
سر بلنده شوه فرقه د خاکسارانو
زه آزار کړم ستا کږو کږو مژګانو
کاڼی پریوتی په خونه د بدانو
سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو
لکه جیم په قلم ښکلی کاتبانو
شینکی خال دي محاصل په بندیوانو
در پوهیږم سر به پرې کړې د خوارانو
لکه شمع په زیارت د شهیدانو

ستا د خولې له حقیقته صوفي څه زده له دې رازه څوک خبر وي بې رندانو

۵

چه کو ټلي وي/دي په تیغ ستا د چشمانو
ستا وصال د سر پریکړیو دی دلبره
د پیر/ي سیوری عاقل لره ضرر دی
په سرپوښ محل کښي نور د آفتاب نه وي
هم په دا زما له سترګو ویني ځاځي
مشکین خال دي په سرو لبو هسي زیب کا

ما سوای له یاره هر چي/چه دي رحمانه
سر حلقه دي د جمله ؤ شهیدانو
ژوندي نه مومي جنت بې مردګانو
دا مقام دي د سر تورو دیوانګانو
دا دولت دی نازل شوی په ډاګیانو
چه دي نقش په کښي رنګ دی د لبانو
لکه مُهر په مخزن د در مرجانو
واړه کفر دي په دین د عاشقانو

هر اشنا چي مخ پنهان کا نه یې مومم که یې غواړم شپه او ورځ په سپرو پلیو

لکه خاورې په دربار د درويشانو راشه مه کوه انکار د درويشانو
خزان نه لري بهار د درويشانو خطا نه درومی ګوزار د درويشانو
که څوك ويني ګلزار د درويشانو چه بيان ئي کړ کردار د درويشانو
صد رحمت شه په روزګار د درويشانو
۷

د پېزوان غمی دي زيب کا پر لبانو دواړه زلفې دي چور د ملنګانو/ځنځير د عاشقانو
دا سور ټيک دي شهزاده پر اوربل پروت دی شينکی خال دي معاني د بنديوانو
دواړه لب دي ښايسته تر سرو ياقوتو شرمولې ده ږلې ستا دندانو
تور اوربل دي لکه مار په جبين پروت دی شينکی خال دي مواصل د رنځورانو
د پير سيوری عاقل لره ضرور دی دا مقام دی د سرتورو ملنګانو
ستا وصال د سر پرېکړيو دی دلبره ژوندي نه مومي جنت بې مردګانو
د ليلی دکوڅې سپی بر مجنون پېښ شو په باربار يې ښکلا وه پر دوو عينانو
ماسوا له ياره هرچي وي رحمانه واړه کفر دی په دين د عاشقانو
۸
که هرڅو په صحرا سر شوم هم په کليو بيا مي نه موند هيڅ خبر د هغو تلليو
خدای زده کومي خواته لاړل حال يې څه دی خبر نه يم د ګړنګ له پرېوتليو
له دې غمه مي زړه چوي که څوک خبروي لږ په ما هم خبر وکړئ خدای ساتليو
پس له دې به چيرته درومئ څای مو کوم دی؟ راته وايئ د دنيا په سرای راغليو
ګوندي ستاسو په مخ زه هم ښښنده شم لاس د خدای و درته نيسئ پسندليو
هيڅ خبر يې په هيڅ لوري موندی نه شي که يې غواړې شپه او ورځ په سپرو پليو
له ناپوهه خلکه نه کيږي پوښتنه زه و تاسي وته وايم پوهېدلييو
خبر نه يم چي په باب مي کښلي څه دی؟ زه رحمان په اندېښنه يم له دې ښکليو



۱
د دلبرو په درګاه نه حرمت لرم نه جاه
غوڅوي مي د زړه ولې د چشمانو په نګاه
همره قدر مي پرې/هم نشته لکه قدر د ګياه
هيڅ خبر له ځانه نه يم چه ئي څه لرم ګناه
يو نظر را باندی نه کا از برای عند الله
که له غمه ئي سر پټ کړم بل سر نه لرم پناه
د رحمان په څير دی و مه/نه شی حال احوال د چا تباه

٢

چي ئي وليده ستا حسن بې حسابه    د رحمان به بخت هاله له خوبه ويښ شي

په  آرزو دي د نرگس سترگې څلور شوې له دې  قصده تاو پيدا شه له آفتابه

ستا په غم مي سترغلي سرې ناغې غنچه سره د زړه په وينو شوه غرقابه

شوې    يا خيمې دي سياه پوشی سره طنابه

که دي زلفي په مخ پيچ و تاب شوې    ويښته  څه  طاقت لري د اور له تابه

ښائي    خوشحالي مي نور نايابه شوه نايابه

زه چه خدای د ستا د غم سره آشنا کړم    د سبزې اثر ئي پاڅيده له آبه

سترغلي مي د فراق په ژړا سره شول    ځکه مخ فنا کوي تر کوه قافه

ماه خورشيد دي په ښايست پوري شرمېږ ځان به څو ځنډ ې په گوته له ترابه

ي    خبر زده کړه ته د اوښکو له سيلابه

زه دي پيژنم په اصل کښي خاکي يې    که سترگې ورته پورته کړې له خوابه

څو دي خيال د آشنا  گرزي په ليمه کښي

چي دمخ و آب و تاب ته يې نظر کړم    را ته هيڅ شي د گلونو آب وتابه

٣

ورځ دي تيره په شوم□ کړه شپه له خوابه خدای به کله يادوې خانه خرابه

په شتاب شتاب دي تله دي  که  پوهيږ ې غافل مه شه د دې عمر له شتابه

دلته دم و قدم دواړه په حساب دي    پل غلط (له)د لاري مه ږده بې حسابه

راستولی خدای حساب دی په کتاب کښي خبر زده کړه له حسابه له کتابه

ته و خپلو نيکو بدوته نظر کړه    چه بدي دي  څو  تيری  کړي  له ثوابه

په هغه جهان به څرنگ/څنگه (جو)ځواب    چه په دې/دا جهان عاجز يې له

وُکړې    (جو)ځوابه

عاقبت به تورو خاورو لره درومې    ځان به څو ځنډې په گو(ته)تو له ترابه

زه دي پيژنم په اصل کي تراب/خاکي يې    ته چي ځان ځنډې په گوتو له ترابه

څو په دا جهان اوبه له تندي نه شې    په قيامت به دي سينه نشي سيرابه

دکاغذ په کښت□ سيل/سَير به کړې تر    دا کښت□ به دي مرگی کاندي غرقابه

کومه/رحمانه    اوس چه سبوري لره/له ورتښتې له

چه آفتاب  يوه  نېزه شي بيا به څه کړې    آفتابه

په آزار د چا راضي مه شه رحمانه    که خلاصی په قيامت غواړې له عذابه

آس دي داغ کړ بې منصبه

په شپه خوب کړي بې ادبه — سود ئي څه وي له مرکبه

هم له روزه هم له شبه — له مرده ؤ مرکبه

تر مينځ ورک/ډوب شوې مذبذبه — اوبه نه پيژنې کبه

په مذهب کښي بد مذهبه — په درياب کښي تشنه لبه

بې خبر له مسببه — دا خبره ده عجبه

خبر نه شوې له مطلبه — نه تش ځان وژل اقربه

آس دي يون کا بې جلبه — نه له کور و/انگور نه له عنبه

۵

ته شها يې شکر لبه / گل رخساره سيم غبغبه
په نادرو کښي نادره / په عجبو کښي عجبه
په جمله ؤ معشوقو کښي / بوالعجب يې منتخبه!
بې زيوره ښايسته يې / بې ترتيبه مرتبه
دغه داد د الهی دي / بې تالاشه بې طلبه
آب حيات چه حيات بيا موند / ستا د شونډو له سببه
مخ دي سپين تر سپين سبا دی / زلفې توري تر تور شبه
ستا د مخ عرق دانه وو/ده / زينت رانيو/داره له کوکبه
د ښايست (مُخی)مخ دي نشته / تر مشرقه تر مغربه
د وصال مونده دي گران دي / مگر فضل شي له ربه
چه د رب فضل پرې وشي / هغه خلاص شي له غضبه
دا دولت د خدای په داد دی / مونده نه شي له نسبه
عشق څه هسي علم نه دی / چه حاصل شي له مکتبه
مکتب حال د مذهب وايئ / عشق سوا دي له مذهبه
د عاشق مذهب هم دا دی / چه دم نه وي بې مطلبه
ستا د حسن په صفت/تعريف کښي / رحمان گونگ دی/شه له ادبه

۶

په هر زړه چه د يار مينه شي غالبه / بله مينه ئي هيڅ نه وي مناسبه
نوری واړه مرتبې به ورته هيڅ شي / که خبر شي څوك له هسي مراتبه
لياقت ئي هر وګړي څخه نشته / عاشقي يوه پايه ده عجائبه
د طلب له کوتاهيه ويره وکړه / که هر څو دي لار کوتاهه ده طالبه
عشق خرگنده خزانه ده خوار هغه شه / چه خرگنده خزانه شوه ترې غائبه
غوره خط د مهرويانو تر خط نشته / که هزار رنگ کتابونه کړي کاتبه
هيڅ ئي مه پوښته له فرضو له واجبو / په هغو چه عاشقي کړه/کړي خدای واجبه
عاشقان تر سر و ماله يار ته تير دي / خدای دي دا طايفه نه کاندي کاذبه
زه رحمان د خپل صاحب په رضا زيست کړم / څه پکار دی بنده/دي د بنده بې خپل صاحبه

۷

تا چه په دا تورو سترګو وکاته و ما ته / زه رحمان چه دي وينم/يار ووينم وايم خدايه خير کړې
ما خو چه ته وليدې هغه ساعت مي ووې / زړه دي زما تور کړ له دې نوره مخلوقاته
شيخ/شېخان و زاهدان چه نصيحت و ما ته وايئ / نوره به مي مينه د زړه نه شي له تا ماته
څه شوه/وشو که زه انگشت نما شوم ستا په مينه / نه دي خبر شوي ستا د مخ له محسناته
مرم په دا چه ما له تا جار باسي هغه خلق / لا تر ما نه خوښ يې و قاضي ته هم ملا ته
بيادي په ديدن ترما ړومبی/وړنبي ځغلي و/درزغلي خوا ته
گډه ښاپيرۍ ده د بنی آدم له ذاته

د خروار دعوه ئي وګڼه ممکنه

که له خدايه دي وخلق وته مخ شي
هميشه به در په در ګرزې رټلی
د دې سست بدن منت په رحمان باندي
لاس په سر مه شه د هر ګېډي و در ته
هر چه نه لري نظر و سيم و زر ته
نه هغه چه منت بار وي/شي و کوثر ته
وايه حال د زمانې و برادر ته
چه ئي نه دي راپيرودي څني بيرته

که د عقل څه اثر لرې و سر ته — که رت يا جو دانه به ئي وي درته
په نظر د هغو خاورې سره زر کيږي — که يې پور وي د يوې جو دانې درته
بې منته جام د زهرو څښلی ښه دي — له فردوسه به دي مخ شي و سقر ته
د يوسف له حاله زده کړه دغه پسه — د استوګنې ځای به بيا نه مومې چيرته
دې فلك و چاته هيڅ بخښلي نه دي — چه له خپله دره تلای نه شي بل درته

٩

آئينه غوندي حيران شم و دې کار ته

چه نظر کړم د خوبانو و رخسار ته — حق حيران د خدای په کړه شم و دې کار ته
له دهشته ئي ريبار پوښتيدی نه شم — خدای زده څه به ئي ويلي وي ريبار ته
خلوتيان لکه برده پکښي خرڅيږي — غړ ئي نه خيژي/خيږي د حسن و بازار ته
ته چه ما پو ښتې د يار له حقيقته — څوك د يار خبرې کاندي و اغيار ته
درد و غم د عاشق څه شمره نه دي — چه ئي عقل د چا رسي و مقدار ته
زه و يار چه سره خپل غمونه شمار کړو — يار و ما ته حيرانيږي زه و يار ته
ددنيا چارې همه واړه په وار شي — ما د يار غمونه نه پريږدي و وارته
رحمان هسي وزګار چيري دی له عشقه — چه غوږ ونيسي ناصح غوندي وزګار ته

١٠

په يار کښي دي خدای نه کا څوک بې پته	چي موقوف وي هغه کار په عنايته
غور. يې نه وي د هيچا په نصيحته
زه په اور کي سوې ښه يم نه بې پته	لا د پاسه سور پيزوان شه بله نته
کمه نه ده دردمندي تر عبادته

١١

ستا په مخ کي څه/چه حساب د جمال نشته | ځکه ما څخه د صبر مجال نشته
ته د سر و د مال ويره په ما مه کړه | ويره ما څخه د سر و د مال نشته
زه په دا سبب له ويرې سره ريږدم | چه ستا ويره کښي ثواب دی وبال نشته
که وعده د يوې چارې يو ساعت کړې | د هغې چاري اميد مي په کال نشته
د شهيد و حال ته ګوره حال ئي څه دی | بې تا هسي زما حال دی بل حال نشته
روښنائي مي د چشمانو ستا ديدن دی | په دا کور کښي بل څراغ و مشال نشته
په جويبار زما د سترګو سرو ته يې | په دا نهر باندي بل څه نهال نشته
مخ دي بې خط و بې خاله هسې زيب کا | چه ئي هيڅ حاجت په خط و په خال نشته
مخامخ که راته وګورې دلبره | په کاته کښي دي ثواب دی وبال نشته
د آفتاب په مخ کښي هره ورځ زوال وي/دی! | ستا د حسن په آفتاب کښي زوال نشته
په جذبه د محبت مي ځانته راښکه | نور حاجت مي په رويبار او دلال نشته
ستا په يادو (کښي) رحمان هسي مشغول دی | چه په زړه کښي ئي هيڅ غم د وصال نشته

۱۲

مخ ته که دي نمر وايم د نمر زلفې تار تار | سرو که ستا قد بولم د سروې يون رفتار نشته
هرڅوک چه دې ستا و آتشين رخسار ته ګل وائي | پوچ وائي د اور په مخ کښي وقر د ګلزار نشته
زلفې دي ناحقه خلق سنبل بولي دلبره/بولي په سنبل صنمه | ولي چه له مشکو سره هيڅ د ګياه کار نشته
ما چه غړ په غوړو ستا د در د سپيو واوريد | هسي رنګ بلبله په چمن کښي په ګفتار نشته
ستا ديدن هغه کا چه ئي سر په تنه پاس نه وي | ولي چه د سر د څښتن حورو وته لار نشته
يار به د رقيب په لورې خدای نه کا رحمانه سم | ولي چه د سپيو فرشتو سره څه کار نشته

۱۳

نا آشنا لره هيځ غم د هجران نشته
ګنه بل خوا ته د هيچا امان نشته
چه ئي هيچرته/هيچيرې منزل و مکان نشته
زما يار غوندې دلبر په جهان نشته

دغه هسي رنك آفتاب په آسمان/جهان نشته
چه باغ وته ئي لار د خزان نشته
په دا ښهر کښي نيستګار و ناتوان نشته
د ليلی په دروازه کښي دربان نشته
دلته کار د هر نا اهل و نادان نشته

١۴

په دنیا کي مخ د یار دی نورڅه نشته هرچي دی د یار دیدار دی نور څه نشته

چي و هجر ووصال وته يې نظر کړم یو دوزخ دی بل ګلزار دی نورڅه نشته
کارخانې چي ددې دهر لېدی کیږي همګي دعشق سرکار دی نورڅه نشته
هر مژګان يې په ما هسي چارې کاندي وایم عین ذوالفقار دی نورڅه نشته

بویه مرد چي يې له مخه زلفې واخلي دغه ګنج دی دغه مار دی نورڅه نشته
د محسن د حسنات صفت به څو کړم کوتاه وایم چي بې شمار دی نور څه نشته

و هرلور ته چي د زړه په غوږو څیر شم جوړ د محبت بازار دی نور څه نشته
چي سپین مخ او تورې زلفې يي لیدی شي دغه ګنج دی دغه مار دی نور څه نشته
هر طبیب ته چي ځان وښیم دا وایي چي له عشقه دي آزار دی نور څه نشته

خوار رحمان که بې تا مینه په بل چا که عین دقتل سزاوار دی نور څه نشته

۱۵

تا خو زده زما د زړه له احتیاجه نور مي څه پو ښتې چه څه غواړې محتاجه
د طالب و/د مطلوب راز به ما دروښود که ته نه وای خبردار له دې رواجه
یار که یار ته حال په خوله نه وايئ څه شو و حکیم ته پټ څرګند وي له مزاجه
که زما له حاله ما پو ښتې حال دادی چه بې تا مي ورځ تیاره ده تر شب داجه
آشنائي به ما په کوم قوت کوله که خبر وای ستا د هجر له تاراجه
که له سلو به/په سلو کښي یو خواست د خدای دي هیڅوك رنځور نه کا بې علاجه
چا قبلیږ ی ته مشغول اوسې له خپله تخت و تاجه
په رحمان بلا پسې که زهیریږ ي

۱۶

چه خبر شوم د ساقی د جام له راحه د دنیا ناوې په عقد کښي دین غواړي
زه چه زلفې د یار ووینم په خوب کښي لکه مړی ملاقي شوم له ارواحه
سبا زیری د وصال په مهجور کاندي په شپه مښک راباندي ووري تر صباحه
که روا کا خون خوردن د عاشقانو د هیواد خبر مونده شي له سیاحه
هر ساقي چه جام د عشق لري په لاس کښي څوك وتی شي د خوبانو له صلاحه
دا پیاله ئي په مستانو ده مباحه
مخ بې میني که څوك ستايي ستایه نشي د ممدوح له قدره چا زده بې مداحه
ای رحمانه ځان ئي ژغوره له نکاحه

۱۷

لړ پرهيزکړه له رقيبه د خدای روي دی/خدای د پاره
رحمان ستا په مخ بې څښو هم مئين دی
ترهيدلی يې هر صبح و شام په څه؟
ته و ما وته کوې دشنام په څه؟
۱۸

يو ساعت را سره نه يې رام په څه؟
لکه عمر بيرته نه ږدې ګام په څه؟
رقيبانو/غمازانو ته بخښې انعام په څه؟
ګڼ وې سره حلال حرام په څه؟
بيهوده دي ورته کيښود دام په څه؟

مه کړه خدای چه څوك بې ياره خوښ خرم وي
و دې خپلو برندو/مستو سترګو ته دي وايه
لړ ئي وپوښته چه حال دي د زړه څه دی
زه رحمان/رحمان خود پخپله ګرم يم چه مئين شوم
زياتوې د غمزده ۀ غم په څه؟
ژړوې را سره نور عالم په څه؟
چه می ويني د زړه څښي هر دم په څه؟
ته په ما باندي کوې ستم په څه؟
زه به اوسم بې تا خوښ خرم په څه؟

ولي نه ګورې و ما ته سم په څه؟
ستا په غم کي چه ما ويني عالم ژاړي
په مطلب دي د سرو شونډو نه پوهيږم دغه/ولي نور عالم مي بولي ګرم په څه؟
ستمګار چه ستم کا څه بهانه کا/بهانه کاندي
۱۹

چه (ورژني)ور وژني مي قلم قلم په څه؟
د رحمان له سترګو څاڅي نم په څه؟

که څه وايم له هجرانه وايم څه؟
توان د دم وهلو نه لرم و يار ته
چه ئي ووينم له ځانه خبر نه يم
د خپل زړه له حاله هيڅ را ويل نه شي
د عشق راز چه هيڅا نه دی بيان کړي
د خپل يار له غمه درست په اوښکو ډوب يم
زه چه پروت يم د هجران په تناره کښي
سر ومال د سړي لوټ کړي/کا زړه ئي يوسي
زاغان بولي بلبلان شړي له باغه

هر چه وايم ترهمه واړو بهتر دی
له دې درد بې درمانه وايم څه؟
چه توان نه لرم بې توانه وايم څه؟
چه خبر نه يم له ځانه وايم څه؟
له بې نامه بې نښانه وايم څه؟
ترو به زه له بې بيانه وايم څه؟
له دې هسي رنګ طوفانه وايم څه؟
د وصال له ګلستانه وايم څه؟
له دې هسي دل‌ستانه وايم څه؟
د دې دهر له باغبانه وايم څه؟
زه رحمان به له جانانه وايم څه؟

يو خوشحال يو كم سل خټک نور په طبيعت كښي
خداى دي ملاقات د هيچا مه كا له نامرده
زه به صدقه كړم سل بې درد تر اهل درده
كله زرغونيږي سره لاله له هره ګرده
ستا زما له مينى خلقه واړه خبر ده
ځار شه د رحمان سړبني/سړه بني له
كله هم پټيږي وچي شونډي ګونه زرده يوه فرده
٢١
كه زما مينه په تا ده خطا نه ده
آئينه ئي نا صفا ده صفا نه ده
ځوك چه بې د ستا له مخه بل ته ګوري
دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده
هر عاشق چه پخپل يار پسي ژړا كا
خو هم نن ئي تماشا ده سبا نه ده
د دنيا په تماشا چه ځوك نازيږ ي
ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده
كه ته سل ځله له ما سره جفا كړې
اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده
هغه تير شو چه مي مينه په غلا غلا كړه
و رحمان وته ويړيا ده بها نه ده
معشقوقه كه د خپل سر په بها مومي
كه بې تا ده ناروا ده روا نه ده
٢٢
عاشقي نادره چار/يو نادر كار دى په جهان كښي
كه(ئي كړم هم هيڅ يې/ګنم هم ئي هيڅ نه ګڼم سوګند دى
د دنيا مينه بې كاره اوريدى/ه شي
كه رحمان په جهان ډير پايم دلبره
٢۴
له اغيار سره سودا څه پكار نه ده
آشنائي د هر آشنا څه پكار نه ده
له اغيار سره خندا څه پكار نه ده
د جفا په ځاي وفا څه پكار نه ده
سل يار د يوه يار د پاره كړى شي/كيږي
په خپل ځان خپله ثنا څه پكار نه ده
بد له بدو سره بويه نيك له نيكو
په دا چارو كښي غوغا څه پكار نه ده
هر بلبل به دي ثنا كا كه ته ګل شې
د دې هسې رنځ دوا څه پكار نه ده
عشق د بوي په خبر په پټه خوله خرګند وي
د بيمار په ځان هوا څه پكار نه ده
د عشق درد واړه عاشق لره راحت وي
ولې بې خدايه سودا څه پكار نه ده
عاشقي/عاشقان وحرص هوا/حرص وهوا دي سره لري
وابستګي د دې دنيا څه پكار نه ده
چه مي وليده رښتيا څه پكار نه ده
زندګي زما بې تا څه پكار نه ده

بې مطلوبه به د چا نه رسي دا هنډه — که را ډکه شي د تور لحد ګورهنډه
چه فرقه د معشوقو شوه په زړه ټنډه — چه جرګه د عاشقانو وي پرې پنډه
خدای دي سرو د چا نه کاندي ارهنډه
۲۵
ما چه جور و جفا بیا مونده له یاره
له دښنو/دښنه به د ښاد طمع څوك څه کا — د وفا طمع به څه کړم له اغیاره
دل آزار که دل آزار کا/شي ماته نه شي — چه د دوست له لاسه غم شي وردوڅاره
حیف خو دا دی چه دلدار شي دل آزاره
دا ګِله هم ډیره ډیره له هغو شي — هر چه طمع ترې د ښو کیږي بسیاره
اوس دا ستا رضا جفا کړې که وفا کړې — دواړه لاس مي اوس ختلي له اختیاره
طالبان خو تر مطلوبه پوري پړه دي — خدای دي تا بې وفا نه کا وفاداره
چه/که له ډیري حیا نه ګورې و چا ته — څه خو مخ کړه د رحمان د زړه دپاره
۲۶
وقت/وخت د نو بهار دي زه جدا له خپله یاره — زه یو خوار و زار یمه رحمان په عاشق کښي
اور د خوږو زړونو چه د غره په سر بليږي/لګيږي — دریغه دریغه چه بې یاره ځې بهاره
دا څه عاجزي ده چه زه کښم په کاغذ باندي — شنې لوخړې خيژي له ښتر و له چناره
راشه وویریږه د عاشقو له آزاره
دا څه اوښکي نه دي چه بهيږي له چشمانو — ويني دي بهيږي د زړګوټي له پرهاره
رنځ مي هسي سخت دی هر زمان په ما زیاتیږي — راشه اې طبیبه ګوندي مرم د رب دپاره
سیند د اوښکو درومي چه راغلی له کهساره
غرونه دي نړيږي چه په حال زما خبريږي — راشه که ئي اوري د رباب له هره تاره
نور څه نه دي واړه دا نارې د بیلتانه دي — خپل دي که پردي دي راته نه ګوري له عاره
۲۷
یو هنر مي منظور ستا په نظر/هنر نه دی/شته
هیڅ اثر د رحمان اوښکي په یار نه کا
چه له غمه دي ژوندی ګرځم دلبره
ستا په عشق کښي دروغژن یم سر تر سره — بارې دم د خدای په لاس دی ناز پروره
زه به ستا له غمه کله شو لا مړ وم — که چا مرګ او بیلتون اېښي وای په غوره
جدايي به مي یو دم قبوله نه کړه — نور مي مه پوښته له شامه له سحره
شام سحر مي دغه ستا زلفې رخسار دي — خبر نه یم له فردوسه له سقره
چه خبر دي په وصال و په هجران شوم — روښنايي د ورځې چیري وي بې نمره
بې د ستا له مخه ورځ راباندي شپه ده — لکه زه چه بې سامانه یم بې سره
هسي بې سر و سامان دي هیڅوك نه شي — که زه وکړم ستا په عشق کښي سل هنره
خدای دي اوښکي د چا نه کا بې اثره

۲۸

زه عار نه لرم په عشق كي له پيغوره بې پروا يم د ست په څير له اوره
ږدی په خوله د سمندر مهر د مومو چه ځوك ما منع كوي د عشق له شوره
بې هجرانه زما بله خواري نشته ولي نشته تر دا بله خواري نوره
لكه ته چه خدای هر ګوره ښائسته كړې زه ئې‌هم هسي بې صبري كړم هرګوره
چه په تور و سپين مي اړوي دا ځوك دی كه ته نه يې په مخ سپينه په زړه توره
د رقيب له بد خوي/بده خويه به څه وايم لا چه يار ور سره مل شي هاله ګوره
چه ئي پور د مرګ تر پوره پوري هيڅ/لا بتر دی هی توبه د بيلتانه له بده پوره
ګڼه غم كله رسيږي له غم خوره
دا مي خپل نصيب طالع دی رارسيږي چه په چا وشي دا ستا د زلفو سيوره
قاف تر قافه بادشاهي به يې روزې شي ګڼه ځوك په هو ښيار وزي له كوره
عاشقي سړی مجنون كاندي رحمانه

۲۹

نه رسيږ ي ستا و حسن وته حوره كه نښتر كه سپاري وي كه كجوره
ستا تر قده تر قامته نه رسيږي تر رخسار پوري دي شمعه ده بې نوره
تر قامت پوري دي سرو ده سر كوزې ښاپير ئي په نظر وي نا منظوره
هر سړی چه دي و حسن ته نظر كا طايفه دي د صوفيانو كړه مخموره
چه تا مى د خپلو شونډو ور په خوله كړ زه خو ستا په مينه لاړم له شعوره
اوس ته وايه چه په څه رنګ دي وستايم ګڼه كله ځوك وتی شي له دستوره
دا جذبه د عاشق نه ده نور څه ده چه چهره دي كړه په خوب كښي را حضوره
اوس به زه د شب خيز څه منت وكړم خدای دي مور كا په داهسي زويه بوره
چه په ننګ و په ناموس تر لوره كم وي صدقه شه نا قابله زوی تر لوره
كه سل ځله زويه غوره وي تر لوره ننګيالي تربرونه ښه دي او كه نه وي
ننګيال ترله هم ښه ده له تربوره خوب‌روئي بې دلبر څه په كار نه ده
لكه ونه بې ميوې په پاڼو ګوره كه د غلوزې لباس وكا غزا وشوه
شهد نه دي چا موندلي بې زنبوره په رحمان د ښايسته ؤ قدر ډير دی
د طبيب له قدره چا زده بې رنځوره
څه به رسي و ميرمن وته مزدوره

۳۰

د رقيب له بدو سترګو نه/دي ځان     زما عمر جدايي کړ بې له نوره
ژغوري     دا خبره په عالم کښي ده مشهوره
همره توان و توفيق نه ګڼم په بخت کښي     په هجران کی خبر مه شې/چه خبر شي
په نظر د مدعيانو تور کوډَی وي     له مهجوره
د رحمان د سترګو نم به هاله وچ شي     هر عاشق چه بهره مند وي/شي له
چه يوه خبره نه لرم منظوره     حضوره
خدای زمونږ فرقه پيدا کړه نا صبوره     چه تائب کا ما له فسق و فجوره
ياره ستا سترګې دوستان وژني په توره     که ئي کښينوم د کټ د پاسه حوره
د زړه خونه مي ئي ولوټله چوره     که وچ شوی د چا نم وي له ناسوره
پيدا شوې عاشقي ده له ضروره
٣١

چه په وقت د ځنکندن وکاږې ږيره     زه رحمان د آزاد□ په طلب/تالاش ګرزم
هر سړی چه کان ـد/ګانده غم په مخ     ترو نن ولي هسي ناست/رنګ يې بې
کښي ويني     تدبيره
چه سبا ارمانوې پند د پيرانو     له هغه غمه لا نن ګرزي دلګيره
د يار ياد به دي ځای څه رنګ په زړه     ولي نن د پير طلب نه کړې بې پيره
نيسي     ياد د غير چه لري نه کړې له ضميره
چه د ټوك په طلب ګرزې خدای دي هير     فقيري دا هسي چيري وي فقيره
دی     زهير مه شې په آشنا پسي زهيره
دغه غم دي خدای بدل کا په ښاد□     چه ئي خونه د خاطر وي پرې منيره
هرسړی د هغه مخ په رڼا ګرزي     عاشقان د لعلو لبو له تاثيره
هميشه پراته په اور و په اوبو وي     و هر چا ته خپل آشنا دی بې نظيره
که هر څو ښايسته ډير دي په جهان کښي     بارې نه د تورو زلفو له زنځيره
٣٢

زړه مدام راته ويل چي ژاړه ژاړه     په ژړا سره دا تللی اشنا غواړه
مسلې د بې ننګ□ ورپسې لنګ کړه     بيچاوړ□ د ننګ ګښيږده وه يې نغاړه
که د يار په سر لويئ دا ستا رضا وي     په خندا خندا راځه په لکه غاړه
دا فلک چي د آسيا په دود ګردش که     په دنيا کي به پرې نږدي دانه لواړه
په دنيا کي ګوره هرچي زنده سر دی     د اجل په تيغ به پرې که د دوي غاړه
د مکې ځنځير حاجيان په لاس کي نيسي     رحمان ونيوې د يار زلفينې واړه
٣٣

يوه هسي بې سوزي مي شوه په برخه     چي سردي بې لا بتره ده
تر ساړه     مصلې د بې ننګ□ ورپسې لنګ کړه     د هوس مصلې قط
کړه ويې نغاړه
يار زما د سترګو تور پرې ګرزېدلم     په هجران کي مي د سترګو رڼا
لاړه
په خوار مونده نه شي له سګانو     په لوخ سر سره دروزي له
بګاړه
٣۴

زلفي د دلدار دي چه هر څوك ئي طلبګار دی
سخ د هغه چا دی چه په در كښي ئي قبول شي
ما عبدالرحمن غوندي جواب/سلام كړ ورته سلو
۳۵
كله مرې له لورې كله مرې په ډير خواړه
نه ئي هغه ورې په قرار دي نه ماړه
كله وبله كيږدې لاس په توره په چاړه
درست ئي په غمونو په دردونو ولاړه
پيښ به په هغه شي چه واهه شي هم تاړه
زه يی درمانده يم په پښتو په اخاړه
هر چا چه په دا ژوندون كښي
خپسر/خپلسر وژاړه
يون دی په دا لاري هم د ځوان هم د زاړه
لوې دی كه هلك دی كه غټان دي كه واړه
زار د هغه چا چه ئي له دره وشاړه
خدای خبر چه كوم يو هغي تركې ويلاړه!
۳۶
هرنفس/ساعت د بيلتانه په تاخت لتاړه
باد خزان ئي د زړه مېنه كړه ويجاړه
د لاله خوله/قوله ئي پرې يسته له ناړه/لناړه
زباني ذكر كه سل رنګ كا خراړه
په نرم به نرمه نه شي وچه تراړه
هر چه حال ئي ځانكندن شي عمر واړه
چه د يار/كه د شها د زلفو ځيل دي شي په غاړه

ګاه په غارمه/كله په نمرسوزې كله ريږدې په ساړه
واړه په غوغا دي چه راغلي په دنيا دي
كله لاس په سر و بل ته/ځبله كيږدې تواضع كړې
خاوري د آدم چه كړې خمير فرشتګانو
څه شو كه څوك نن ساعت وهل كا يا تړل كا
څو به وي تندرسته دا زموږه بِنا سُسته
ښائي كه څوك پس له مرګه خاندي په لحد كښي
وينم/ويني واړه تلوني هيڅوك نه دي پاتي شوني
خود به وران شې د دنيا بازاره تاړه/بازار ناړه
لا غُنچې په باغ كښي سترګې سپړدې نه وې
هسي باد پرې د فنا له لوريه والوت
څه بزرګي به ئي د بازاو د همای وي
كه سل زر كاله پرې تير شي په اوبو كښي
تر دا هسي عمره نه عمر بهتر دی
ترو له خلاصه/تر خلاصي ځني بندي ښه يې رحمانه

ما تړلي دي چشمان محکم د زړه
يو خلوت دی د امکان  سُلم د زړه
بالا تر دې هسي شان قدم د زړه
چه کړی نه شي طبيبان مرهم/ملهم د زړه
که آباد کا څوك وِيران حرم د زړه
ما دي ايښی په آسمان قدم د زړه
ولي نه مومي رحمان همدم  د زړه

٣٧

ساقي پورته شه د ميو جام تيار کړه
هر دم تيغ دا ستا زما په گلو ګرزي
تر خود□ په هورته بله بلا نشته
دا پنځه  ورځي ژوندون چه غنيمت دی
که غمخوار غواړې په غم و په اندوه کښي
څودي دوه سترګې غړيږي په جهان کښي
هغه څوك دی چه تهمت پرې وايه نشي
مدعي چه په خوله/زړه ورشي هغه وايئ
بې  وفا  دي د دې دهر ياران واړه
رحمان وايئ د دنيا چارې فاني دي
عمر هيڅ معطلي نه لري/کاندي تلوار کړه
 هر نفس د خپل  نفس له تيغه ډار کړه
خادمي/ښاد مي د بيخودانو په دربار/دلبار کړه
 شکرانه په دا نعمت د کردګار کړه
ښيښه  ډکه د شرابو اختيار کړه
ننداره په هر ساعت د خپل نګار کړه
غوږ په هيچا باندي مه باسه خپل کار کړه
ګوش و هوش د محبانو په گفتار کړه
چه دي پس له مرگه يار شي هغه يار کړه
البته په دا خبرو/ه اعتبار کړه

٣٨ ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه

چه مي مينه خدای په تا باندي پيدا کړه ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه

اوس دِ ستا رضا جفا کړي که وفا کړې بې له ما چه تا خندا کړه ما ژړا کړه

گل په لعلو و په گوهر کله څوك پيري کوم وگړي په هوس د غم سودا کړه

بې له ما چه دا ستا غم په هوس پيرم چه يوه ورته ښکنځل کړه بل دعا کړه

دوه ياران به دا رنگ نه وي چا ليدلي تا و درست جهان ته مخ و/او ما ته شا

ما و درست جهان ته شا و تا ته مخ کړ کړه

ډير هندکي په جهان گرځي د چا ياد دي عشق عالي پايه د هير او/هيرا و د رانجا

هم په دا ئي تر همه وو نام بلند شه کړه

نا آشنا د بيلتانه له غمه څه زده چه قبوله عندليب د گل جفا کړه

عاشقان د يار تر سپيو هم ځارېږ ي خدای دغه خواري په برخه د آشنا کړه

زه رحمان چه ستا د حسن ثنا خوان گنه ما د رقيبانو څه پروا کړه

شوم/يم ستا له رويه درست جهان زما ثنا کړه

٣٩ په دنيا کښي سر انجام د آخرت کړه

باړه وتړه هاله کښت و زراعت کړه څو لا نه يې غريب زيرمه د غربت کړه

عاقلان په وړاندي ځي په ورستو گوري لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه

سم د لاسه کار هر گوره ډير مشکل دی خو هم دا عمارت هلته عمارت کړه

چه نور خلق ملامت در باندي وايی خو هم دا جهان په ځان باندي قيامت کړه

چه عقبی ته د دنيا په اجر مومې خود پخپله تله واخله عدالت کړه

څو به گورې د قيامت و ورځو شپو ته سر دننه په قلعه د قناعت کړه

چه نيکي بدي په تله کښي تلل شي که حق غواړې ته هم مخ په حقيقت کړه

که لښکر د حرص هوا درباندي زور شي څو دي توان شي د جمله زړونو خدمت

دا به نشي چه ستا ځېځ او د حق مخ وي کړه

هغه زړه چه عرش الله دي گوره کوم دی ته هم پاڅه د هغو په څېر همت کړه

وړانديني هم واړه ستا په څير سړي وو بارې پورته شه يو بل رنگه حکمت کړه

د دنيا چارې همه واړه فاني دي درومه بله خوا دارو د خپل زخمت/زحمت

په طبيب د عاشقانو دارو نه شي کړه

څو دي حق موندلی نه دی مه جار وزه په دا مرسته/مړشه دا جهان واړه لت

اې رحمانه اول ته نصيحت واخله پت کړه

دغه پسه بيا و بل ته نصيحت کړه

تقوی دار شه هاله طمع د جنت کړه

نه یم خوښ د سرو ګلونو په سایه زه خوښ یم ستا د مخ په اور باندی جلیا زه
په اور سوی ښهر وران وي څه حکمت سوي ستا د مخ په اور یمه بسیا زه
دی که دي مومم په دروغ که په رښتیا زه
خپلوم به دي په هر رنګ چه خپلیږ ي نه به ته په دنیا راشې نه به بیا زه
نن راغلي په جهان یو/یې که دیدن کاشکی بیا مومم فرصت په دا دنیا زه
کړې غوڅ کړم غوڅ کړم دې ستا ډیري حیا زه
دا اوږدې وعدې چه ته کوې صنمه سنګ آهن یم آدم نه یم ګویا زه
چه له ډیري حیا نه ګورې و چا ته ژاړم دا چه یا به ته یې او یا زه
چه له غمه له اندوهه دي مړ نه یم سرګردان یم تر فلکه/فلك و تر آسیا زه
که جوړه تلای څوك و قبرو ته دریغه هسي ګرځم لکه خس پاس په دریا
همیشه د خپلو اوښکو له سیلابه زه
که څوك قیاس زما د ډیرو اوښکو وکا کاشکې دا چي په جهان نه وای ګویا زه
زه رحمان د یار ثنا کولی نه شم کاشکي مه وای په جهان کښي څه ګویا
زه

۴۲

اي زما د زړه آرامه راشه راشه سرو قده ګل اندامه راشه راشه
چه همه واړه خوبان دي مقتدیان دي د همه واړو امامه راشه راشه
بې تا نشته هیڅ حرمت د عاشقانو د مشتاقو احترامه راشه راشه
خدای زده بیا به هسی وقت وي او که نه زه ویریږم له ایامه راشه راشه
وي چارې نه شي بې هنګامه راشه راشه
نن هنګام دی که وفا کړې که جفا کړې تله دي تله دي له دې ګرامه راشه راشه
دا جهان د مسافرو یو رباط دی عنبر بویه لاله فامه راشه راشه
پري رویه سنبل مویه ملك خویه د رحمان ماهِ تمامه راشه راشه
شپه لا پریږده رڼا ورځ را باندي شپه شوه

۴۳

په دوران می هسي رنګ دلبر پیدا شه ګویا بل د نمر د پاسه نمر پیدا شه
یا طالع د زماني یا زما بخت دی چه دا هسي رنګ شیرین بشر پیدا شه
چه قاصد د ورك یوسف زیری پرې وکړو د یعقوب د سترګو بیا نظر پیدا شه
عشق دی دا که یو فساد دی نه پوهیږم په جهان کښي چه دا شور و شر پیدا شه
دریغه نخل د عشق مه وای زرغون شوی چه له ښاخه ئي د غم ثمر پیدا شه
ملائك د عشق له غمه خبر نه/څه خبر خو هم ما لره دا سخت سفر پیدا شه
دي په پرهر باندي مي بل پرهر پیدا شه
یو د ترکو بې نیازي بل عاشقی شوه په هر تن کښ چه دغه/د غم اثر پیدا شه
بیا به روغ د عاشق له رنځه نه شي چه له پشته ئي لئیم پسر پیدا شه
د نا اهل زوی پلار به څه ښادي کا د رحمان په دور دا هنر پیدا شه
چه هنر عیب کوي عیب هنر کا

۴۴

مشقت د نادانانو واړه پوچ دی
علميت د بې عملو عالمانو
چه ئي کاندي و نا اهل و نا قابل ته
د رحمان کلام په غوړ د بې هنرو
جرس څکه په فرياد و په چغار شه
د غفلت له خوبه پاڅيده بيدار شه
لکه غُوك هسي په بحر کښي مردار
شه
لکه مال په خمرو خرڅ د خمر خوار شه
لکه بې بارانه ابر تش غبار شه

چه نصيب ئي سينه چاکه زړه افگار شه
لکه گنج د کتابونو په خره بار شه
چه ندا د عاشق په عاشق وشوه
نصيحت د ناصحانو کوم/څه په کار شه
عبادت د ريا کار څه پکار نه دی
لکه دُر په لاس د طفل هسي خوار شه
د جاهل زهد په زهد حساب نه دی

۴۵

په دنيا کښي له دنيا گوښه کنار شه
سمندر غوندي په اور کښي گلعذار شه
پس له مرگه که ژوند غواړې سر گياه
کړه
په پريکړي سر بيا نوی مرغزار شه
خود پخپله د گوهر په څير آبدار شه
دا ترخې اوبه به څه کوې د بحر
په وچ کاڼي باندي ونه د کهسار شه
بې له خدايه نور د هيچا منت مه کړه
ځان په نمر کړه سايبان د هر خاکسار شه
که د وني په څير گل و ميوه غواړې
لا تر ځان ړومبی ولاړ د بل په کار شه
دست په دست که د خپل کار په درستول
يې
د درماندو دستگيري کړه خبر دار شه
خاك نشين په آستانه د هغه يار شه
که دي ويره شي له خپلې در ماندگ
نندارچي د يارد زلفو د رخسار شه
که هوا دي د جنت په خاطر گرځي
د خپل ځان په وينو سور لکه انار شه
که په توره تاريک کښي رڼا غواړې
په ژړا لکه باران د نوبهار شه
که پکار دي د سرو شونډو شيريني وي
چه څوك وايې عاشق ړوند دی هغه خوار
که راضي يې چه دي باغ شي د زړه سبز شه
د رحمان په عاشق کښي سترگې
وشوې

هيڅ مى نه زده نه پوهيږم دا څه پېر شه
زمانه مي د رقيب له لاسه وژني
د هجران غمونو هسي په عذاب کړم
چه په تيغ مي لوبي کړې سزا مي دا ده/وه
تير ساعت به د هيچا په لاس کښينوزي
چه مي نوشه د هجران پياله کړه تلخه
چه ئې نه په وفا ياد نه په جفا وي
چه دلدار مي د اغيار په شکل و ځېر شه
۴۸

چه مي سپى ګاڼه هغه را باندي شېر شه
هغه عيب چه مي لږ ګاڼه اوس ډېر شه
ښه چه غوڅ مي زړه د ترکو په شمشېر شه
اوس به څه وايم و چا وته چه تېر شه
د وصال دولت مي ګل/ټول زهر و ګنډهېر شه
څه که رحمان د هغه يار له دله هېر شه

پاڅه يو ځله سيراب د عشق په جام شه په ساغر د ماه و مهر مى آشام شه
له اوله بندگي بيا آزادي ده/وي که مقصود د آزاد لرې غلام شه
د صياد له وحشتونو خپلسر/خپسر خلاص کړه لکه مرغ خانگي پخپله رام شه
ژوندى ځان په زمکه خښ کړه لکه تخم که لويي غواړې د خاورو په مقام شه
درست جهان د کمين په خوي وخوره لکه زمکه هسي لاندي تر اقدام شه
په نيست کښي د هست مرتبه گوره نندارچي په ويرانه/ن کښي د خپل بام شه
و دښمن وته خپل حال پخپله /پخپله عيب مه وايه ځان پخوا تر مرگه ووژنه مدام شه
په مستانو کښي د عقل ځښتن غل دى که په نورو خلقو خاص يې دلته عام شه
اې رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه دغه پسه په صفت د گل اندام شه
۴۹
د دنيا د سود دپاره غمگين مه شه غم د دين و د ايمان کړه/خوره بې دين مه شه
هر گره، گره کشاى لري کم بخته نا اميد له خدايه غوټه جبين مه شه
ډير خفت دى دارنده چه دانه چين شي ځو دي آب و دانه شته دانه چين مه شه
هر مرغه چه د بل غوښې خوري مردار دى ځان حلال که لکه زاڼه/ڼې شاهين مه شه
د ذرې په څير آفتاب په طلب خپل کړه لکه تيره هسي پروت په زمين مه شه
کار په تش لستوڼي نه کيږي بې لاسه لاس په ږيره کړه بې لاسه آستين مه شه
عاشقي او خود بيني دي سره لري که مطلب دي عاشقي وي خودبين مه شه
په خپل کور کښي دي سفر دى که پوهيږې مسافر د هندوستان و د چين مه شه
خپل تابوت درته ولاړ زين کړى آس دى ته په زيرمه د بل آس و د زين مه شه
چه تقوى ديانت نه لري رحمانه د دې هسي همنشين همنشين مه شه
۵۰ دغه ځاي د بيدلانو دى رحمانه
په اميد د گانده ورځ/ آينده ۋ زړه ور مه شه نسيه نقد ځبله بيل کړه اوتر مه شه
په اميد اميد ئي خلق نا اميد کړه د فلك له رهزن بې خبر مه شه
د دنيا بادشاهان خواست کړى له فقيره ته بادشاه د هسي ملك شه خواستگر مه شه
ډ هماى په څير طعمه کړه وچ هډوکي لکه مچ طالب د شهد و شکر مه شه
ځان صدف غوندي و خاورو ته کړه څيرمه لکه ځگ هسي د بحر په سر مه شه
ډير عزيز دي موم دلان تر سنگدلانو ته يو څاڅکى شه د اوښکو گوهر مه شه
حيوانات هم په تسبيح د خداى مشغول دي ته انسان يې له حيوانه بتر مه شه
نفس شيطان سړى و کفر ته وباسي رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه
ټپ ړانده وي عاشقان د ياريه عيب/له عيبه ته ټپ ړوند د هغه يار په هنر مه شه
د دلبرو په کوڅه دلاور مه شه
۵۱

چه له سترګو مي خوناب د زړه عيان شه بيا په اجر د هغې ژړا خندان شه

خراب زړه چي مي ژړل د يار له غمه لکه خاوري د دښمنو په چشمان شه

کمين□ له جمله آفتو خلاص کړم د خليل په څير آتش پرې ګلسان شه

د غصې زهر ئي شهد شول په صبر هسی نه چه و هر چا وته عيان شه

عشق يو داد دي په عاشق باندي له خدايه خپل خلوت مي خراسان و هندوستان

چه د يار زلفې رخسار مي په زړه شه

نقش شو دغه درد دی چه هم درد وهم درمان شه

د رنځورعلاج ترخه ترخه دارو وي د عطار په مخ د اوښکو رود روان شه

چه دا ستا د خولو بوي ور باندي راغي هغه څوك چه تير تر ځان و تر جهان شه

علامت د استغنا به ئي څرګند وي خو چي وچولی يې غوټه کړ تاوان شه

عشق د يار په راڼه وچولي ولجه دی چه ځيګر ئي ورومبی چاك تر ګريبان شه

د ګريبان په چاکول ئي څه لارغه وي خو چي وچولی يې غوټه کړ تاوان شه

عشق د يار په راڼه وچولي ولجه دی مرد هغه دی چه په زيرمه د خپل ځان شه

نادانان به د دنيا غمونه کاندي چه سړی په خپل ګوزار/کردار باندي

نشانه د نادان□ به نوره څه وي پښيمان شه

آدميت څه په دولت نه دی رحمانه بت كه جوړ شه د سرو زرو نه انسان شه

له نظره مي هر سنګ در و مرجان شه

٥٢

که په عقل پسې لاړم پکار نه شه که له بخته مي ياري غوښته يار نه شه

غرونه غرونه خوب په څاڅکي اوبو يار په سيند زما د اوښکو بيدار نه شه

تښتي/درومي چه د درست جهان دلدار مي دلدار نه

معلوميږي زه/چه کم بخت د درست شه

جهان يم چه سړی ورته د سپي په مقدار نه شه

ما غندي او رقيب ستائي طالع ګوره دا زما نا قرار زړه په قرار نه شه

که ئي سل ځله اقرار را سره وکړ! په دنيا کښي مي بل هيڅوك غمخوار نه

ډير غمونه دي چه ئي وخورمه پخپله شه

که مي سل نصيحتونه ورته وکړه هغه خدای بې لاري کړی په لار نه شه

سهل کار دی که رحمان په زړه آزار شوم چه خاطر د هغې مستې آزار نه شه

٥٣

اوس مي مرگ په هر زمان دی مخلصه     مسافر غوندي حيران دی بې مخلصه
چه ژوندون ورته آسان دی بې مخلصه

چي ښكاره شو راته راز د يار له پطه نمطه
پريشان شوم په زړه حيران له دې

ځوک به څه د وفا طمع كا له ښكليو
چي د طمع لفظ خالي دی له نقطه

په كشت د عاشق به پل كښينږدم شطه
كه شم دا ځله خارج د غم له

پرې كړه سر چي شي منصور و هر اشيا ته
تيره والی د قلم راځي له قطه

بيابه ځو زړونه محبوبه په منګول وړي
هسي راغله لكه تكه سپينه بطه

د يار غم به دي هاله په زړه مېشته شي حطه
كه دي غير غمونه شي له دله

نن كاغذ راته د يار رويبار راوړی
ګوره څه به شي معلوم له دغه خطه

چي مي قد د يار دراز او نه كوتاه دی
رحمان واخسته په لاس ځكه اوسطه

۵۵

د هغو چي په هجران شي سينه داغه
نور يې څه دي له ارامه له فراغه

دغه ځای دی د بلبلو د توتيانو
د چمن له ګلو بېرته اوسه زاغه

په شمام يې سر تر پايه معطر شوم
نن د باز د زلفو بوی راغی له باغه

تر قيامته به مخمور بې خوده اوسم
كه يو ګوټ راكا ساقي له دې اياغه

زه به ستا په در كي عمر واړه تير كړم له راغه
د مجنون مي تل روزګار كېده

ستا په نور به زه رحمان صورت ستي كړم
كه يې ووينم يوځل جبين چراغه

۵۶

ما به ولي كړو فرياد او فغان دريغه
كه آشنا وای راسره جاويدان دريغه

له فراقه مخ د زړه په وينو وينځم دريغه
كاشكي نه وای مرګ بيلتون په جهان

فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړي
چي آخر به باندي راشي خزان دريغه

زه حيران ورته ولاړ په ستر ګو وينم
چي دايم راځني درومي ياران دريغه

يو ذره مي په طاعت كښي تيره نه كړه دريغه
ګران بها عمر مي لاړ رايګان

سركښي كي تېر تر حده بېچاره يم
كه قوت د طاعت راكړو رحمان دريغه

۵۷

كه يوځل مي هغه يار وليدی دريغه
سرفراز مي سرګردان وليدی دريغه

چي تمام جهان په عقل غلبېل كړمه
ريز مرېزه مي پيكان وليدی دريغه

د وجود ګلزار يې درست سره اغزی شو دريغه
خارستان مي باغستان وليدی

روغ صورت لكه بادشاه صحت يې تخت دی دريغه
ناست په تخت مي شاجهان وليدی

د تن ښهر يې خرابه خرابي شوه دريغه
بيا مي دا خراب ودان وليدی

لكه زه چي له مخلوقه ګرېزان يم وليدی دريغه
خلګ مي هسي ګرېزان/سرګردان

دا سبق راته تعليم شكستګي کړه چي روغ کار مي شکستګان وليدی دريغه
سخت ساعت ځمکه آسمان راته يکسان کړه فرق دځمکې د آسمان وليدی دريغه
و دې خپلې حيرانۍ وته حيران يم چي حيران صورت شادان وليدی دريغه
د قرآن او د حديث په کتو خوښ شوی بيا په لاس حديث قرآن وليدی دريغه
چي زما رحمت پېغور ګڼي و ماته ما هغه د ځان په شان وليدی دريغه
خپل ياران مي له زحمته په ژړا دي ما دغه ياران خندان وليدی دريغه
د آشنا زلفې مي وليدې په لاس کي بند په لار د هندوستان وليدی دريغه
صبح و شام مي ګدايي د يار د در کړی په دا کار مي ځان مهمان وليدی دريغه
درخانۍ او آدم خان په ارمان لاړل لرې ما له زړه ارمان وليدی دريغه
مخامخ مي ګفتګوې له ياره سره کړای د يار ما دغه احسان وليدی دريغه
چي خطا دي واړه عفو کړي رحمانه يار مي هسي مهربان وليدی دريغه

۵۸

ته ناحق (په)له ما کينه کړې کينه ناکه خپل عمل دی چه دنيا ئي کړه هلاکه
څوك بې وجهي چا ته توره تيره اخلي؟ خدای د ګل ګريوان پاره کړ سينه چاکه
چه خندا ئي د بلبل په آه سرد کړه چه له بغضه په درياب (کښي) چوی تهاکه
ځکه سپينی شوې اول د حباب سترګې لکه نخل سر به وکاږې له خاکه
که تن زمکه کړې زړه تخم باران اوښکي که تعليم د زير دستۍ واخلې له تاکه
بالا دست به شې هاله په نورو ونو څو ونه ووزې د جهان له جمله/درست جهان له واکه
بيا به نه مومې د ترکو واك و حکم چه لاس وکاږې د دې جهان له ژواکه
د هغه جهان ژوندون به هاله مومې عاشقي دا هسي چيري وي کاواکه
ته چه ژغورې سر و مال په عاشقي کښي
چه دا هسي بزرګ/لوي ميلمه و/ته کور ته‌اول غولی پاکيزه کړه له خاشاکه
بيايې څو ضمير دي خالي نه شي له اشراکه
په دويئ کښي به ور نه شې تر توحيده نور د/دي حسن بالا تر دی له ادراکه/تر افلاکه
دا همه واړه حجاب دی چه ليده شي!
په ظاهر لباس غلط د سړي مه شه مينځ ئي ګوره له چغزي اوله مټاکه
اولیأ په جهان ځکه څرګند نه دي چه پاك ژوی خپلسر/خپسر نغاړي له ناپاکه
هيڅ وفا ئي له هيچا سره و نه کړه ترو رحمان به څه مانه کړي له افلاکه
په کينه به آئينه نه کړې ته پاکه

۵۹

هسي نه چي زما يار واړه جفا که صد چندان لکه جفا هومره وفا که
لکه زه چي په خپل يار باندي مين يم يو په سله هومره مينه يار په ما که
زړه يې وړی په احسان دی نه په جور مجنون ځکه په ليلی پسې ژړا که

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دی نه يوازي دغه ناز په ما او تا كه

ځَشكل/مشكل نه ګوري رحمان و هغه مخ ته‌چي فرښتې يې هم د حسن تماشا كه

۶۰

چه خيمه ئي د سيلاب په مخ شوه لكه د حباب تماشا ګوره تر دمكه

هيڅ ويسا نه ده پكار د پاڼ په سيوري كه/لا ترې‌لاندې وي داوسپنو كوديكه/څو لرګو كوډلكه

دا د لاندي به همه واړه چيت پيت شي مګر سر وي چا وكښلی تر فلكه

چه په اصل خدای نسكور وي پيدا كړی څوك به څه خوري د دې دهر له ښانكه

چه دښمن ئي وي له دوسته اړولی د هغو احتياط بويه له كومكه

راشه واچوه د نفس و خولې ته خاورې څو دي نه ده خوله د ګور په خاورو ډكه

هر چه ډكه ئي د ګور په خاورو خوله شي په هغو باندي حرام ده/به وي حرامه نوره څكه

كه نور څوك‌مباركي كا وبله نورې/ځبله نوره و رحمان وته خپل يار دی تباركه

و رحمان ته دي خپل يار وي مباركه

۶۱

ګېده وتړه په پړي سره کلکه
د روټ طمع و مه کړه له فلکه

هر سائل چه سوال د نان کړي له آسمانه/فلکه
ګويا غواړي په کچکول کښي اوړمکه

له آسمانه چه څوك طمع د وفا کا
دغه طمع ئي طاعون ګڼه بې شکه

له بارانه سره هسي ږ/ګلا وورې
چه هر زخم ئي بد تر وي تر ټوپکه

که په چا ئي شفقت و مرحمت شي/وي
ظلم (جور)ځور به ئي بدتر/تير وي تر اوزبکه

موږ به نه شي هيڅ سړی بې قناعته
که ئي خونه وي په سيم و په زر ډکه

بيا به نه مومې کمال بې کمين
که خيمه دي وي د عرش د پاسه لکه

که جهان په نور عالم باندي فراخ دی
په تنګ چشم باندي تنګ شي تر څپکه/له چشمکه

د دې دهر په يارانو کښي آب نشته
که ئي غواړې تر سما و تر سمکه

ترخې اوښکې د عاشق آب و نمك دي
خدای دي نه کا څوك بې آب و بې نمکه

دا درازې انديښنې مه کړه رحمانه
د دنيا چاري په تله دي تر دمکه

۶۲

که په هجر کښي څوك ما پوښتي له حاله
حال خو دا دی چه ناتوان يم بې مجاله

زه د يار په ديدن څکه شتابي کړم
چه د عمر بقا نه وينم تر کاله

چه تر حسنه تر جماله ئي ځار نه شوم
شرمنده يم د خوبانو تر جماله

ته و ما ته نصيحت مه کړه ناصحه
عشق بې نياز دی له ثوابه له وباله

بې د خپل آشنا د حسن له تعريفه
هيڅ مي مه پوښته له نوره قيل و قاله

ما د عشق په درس کښي نور څه لوستي نه دي
بې له زلفو بې له خطه بې له خاله

په دنيا په آخرت مي دي خدای نه کا
بې نصيب د مهرويانو له وصاله

که يار سر په ديدن غواړي مه جار وزه
دغه حکم رحمان کړی دی دلاله

۶۳

څو تر ميانه/مينځه ورانه نه کړې د تن پوله
و به نه رسې تر خدايه تر/خدای او تر رسوله

خدای و تا ته دين دنيا په غوره کيښوه/کښېښو
تا دنيا کړه په دا دواړو کښي قبوله

تر حرص پهورته بله بلا نشته
دا بلا د ستا په خونه شوه نزوله

يو ساعت د خدای په ذکر مشغول نه شوې
تمام عمر د خپل ځان په غم مشغوله

چه باقي زندګاني په فنا پلورې
ځان په کوم دانش دانا بولې مجهوله

بيا و ځان ته عاقل وايې نا معقوله
د دنيا په شيرين پسې ملوله

له خالقه روګردان شوې و مخلوق ته
خلاص به نه شې په هيڅ رنګ د زړه له

نصيحت لکه هلك در باندي تريخ شو/دی نوله
چه رحمان غوندي خورسند نه شې په نول کښي

۶۴

خبر نه يم چه ئي راوستم له کومه          د مطلوب له طالبانو چه ځان شميرې
لکه ږوند چه لاس د بل په اوړه          بيا مي کومي خوا ته استوي چه درومه
کيږدي          هيڅ ژوره لوړه نه وي ور معلومه
خداى را پېښه نر□ لار کړه ناليدلې          لکه ورانه ما شوړه چه وي سر ګومه
خراب زړه مي تورو زلفو ته هوس          باري کښيوت د مرغه په ځير په لومه
کړو/کړي          چه سنګين خاطر مي نرم شه تر مومه
هسي کوډې عاشق□ را باندي وکړې          الغياث د دلبرانو له رسومه
چه ئي هيڅ له خدايه ترس و ويره نه شي کله جام د زهرو را کاندي چه شومه
کله را کاندي شراب د لعلو لبو          اي رحمانه اول سيال شه بيا ئي مومه
۶۵
اعتماد به په دنيا کوې تر کومه          دا رفتار به پسې شا کوې تر کومه
ځو به پټ له مرګه ګرزې سپينه ږيره          په روښانه ورځ به غلا کوې تر کومه
چه د دهر له يارانو وفا غواړې          صيادي به د عنقا کوې تر کومه
د پير□ علاج په ډانګ په لوړ نه شي          دغه کار به په عصا کوې تر کومه
په غفلت به څه اميد د مرحمت کړې          د ناسور د رنځ دوا کوې تر کومه
ته چه پند وايې ناصحه و رحمان ته          شکايت به د قضا کوې تر کومه
۶۶
شمع د دلبر سترګې عاشق پرې پروانه          ځان پرې/ترې خپل جليا کا شي
يې خونه ويرانه
مطرپه معنى کي د دلبر د ميني بحر          شو صدف د سترګو واړه پر په دردانه
غم مي د زړه ويني تر چشمانو رابېرون کړې اوښکې نديويني ولې شوې دا بهانه
زه په دا له سترګو (ځکه) سيند د اوښکو بيايم          يې چي ماهي د وصال وى په
آب خانه
شوه چشمه د سترګو ستا د غم په وينو صافه          ځکه مي همېش اوښکي بهيږي
روانه
خير د ديدن وخوار عاشق ته ارزاني کړه          ته دلبر غني يې د خپل مخ په خزانه
اوښکو د فراق درباندي زور وکړ رحمانه          هيڅ پروا يې نه شي بې پرواهه
مستانه
عقل د رحمان دي په جفا سره مسلوب کړ          مکړه مکړه مکړه هسي بده يارانه

نور دي زما سر وي او د  ترکو آستانه — هسي لذت کا لکه/کاندي جوړ د میو پیمانه
پس له دې مي وار دی هر چه شي په میخانه — بل مقصود مي نشته په کعبه په بتختانه
زه و ساقی جام و باده چنګ و ترانه — تل د لمدو/لوندو خټو اوبه لړ وي بهانه
دیوانه بده خندد و ده به دیوانه — سر ښندلی نشي په اوربل د جانانه
نه خروار د عقل نه د عشق یوه دانه — مه کړه دا دعشق خبرې مستې رندانه
بې نام و نشان شه  که ئي غواړې نښانه

۶۸

تل ژړا فریاد کړم د دلبر په آستانه مستانه — کله به و ماته مخ ښکاره که
زه لکه مجنون ولاړ په طمع د لیلا یم زلفې شانه — اوس به لیلا راشي پر سپین مخ
راغلم ستا زیارت ته که مي زړه یقین نور نه شي دي شکرانه — ټیک پیزوان مي دواړه پیره ستا
تیغ د معشوقو دي په ګردن دی عاشق اېښی پیمانه — هسي رنګه زیب که لکه می په
چیري د منصور په دود سنګسار نه شې خبرې ډېري رندانه — رحمانه — مه کوه د عشق

۶۹

که لړ سترګي وبله کیړدم راته وایئ
مال و ملك ئي همه واړه اوبه یوسي
د کړو وروځو محراب ته ئي حیران یم
ما هاله له پارسائ وو لاس وکښلی/نه وو لاس وللي
ارغواني جامې يې واغوستې/چه آغوندي رحمانه
خدای به ورکا و خوبانو ثوابونه
که هزار شي په آسمان کښي آفتابونه
هیڅوك مه شه غرق په هسي ګردابونه
خدای دي نه بردي په چا هسي عذابونه
که له غمه ئي تصنیف کړم کتابونه
که له مخه یوه خوا کا حجابونه — هسي کاندي د سوالونو جوابونه
کله وي چه یو په رنګ د هغه یار شي — څوك به څه غواړي د بحر پایابونه
په ګرداب د زنخدان ئي هسي غرق یم — په یار کښي عالم نه کاندي/کله کا خوبونه
لکه زه چه ئي له غمه په عذاب یم — د هغو سترګو چي درومي/چه ځي له سترګو سیلابونه
ګفتګوې مي هیڅ اثر ور باندي نه کا — څه نسبت لري بتان و محرابونه
په یوه (جواب)ځواب مي رد کا هزار سواله — چه په لاس کړه مطربانو ربابونه
هیڅ پایاب د فن فریب ئي مونده نه شي — بیا ئي جوړ کړه ستا د قتل اسبابونه

۷۰

را کوي د بيدرديه پيغورونه
چه و رژلی شي د ترکو په تيغونه

نور څه نشته واړه غوښې دي د زړونو
هميشه را باندي ازمائي زورونه

هر نگاه ئي په وکښو د زړونو شېر دی
عالمونه ئي ورکيري په تورونه

خدای دي تور د تورو سترگو چا ته نه کا
په دا اور باندي دي وسوه ډير کورونه

يو د حسن اور يي بل کړ په جهان کښي
گڼه نور ئي کوم راپوري وو پورونه

زه د يار په مينه غل کړم رقيبانو
چه بر پای شوه په هر ښهر کښي

د رحمان د عاشق هسي غږ وشه
(ش)ښورونه

بلوي مي په تندي باندي اورونه

۷۱

په خاطر مي غلبه شول ستا غمونه
ابر د خدای دپاره کيږده قدمونه

څه خو قياس زما د ډيرو اوښکو وکړه
چه مي چيري وو په تن کښي دا

هر چه ستا په دم ژوندي وي نه رغيږي
زېمونه/رودونه

که هزار هزار دمونه په ځان پو کا
که بې تا په ځان پوکي هزار دمونه

له قسمته خلاصيده د هيچا نشته
نور به نه کا په دمونو قسمتونه

سړی/سر ئي کله په کوشش تر ځايه رسي
که داخل شي د مکې به حرمونه

چه توانگر د قناعت په خزانه شي
څو د خدای له لوري/لاسه نه وي کرمونه

قسم وخوري له خوبانو بيا ئي مات کا
نور به څه کاندي دينار و درمونه

څه باور دی د رحمان په قسمونه

۷۲

ژوندي کاندي د دنيا کارو بارونه
جدايي د آشنايانو هر دم کاندي

څوك سر تور پښې يبل/ابله خاورو لره درومي
په مړ و پريواته د خاورو انبارونه

چا کاږه دي په سر ايښي دستارونه

ښه استوگنه د دوو ورونو سره نه شي
بلکه يو ځبله اخلي/اخلي يو تر بله آزارونه

د يوې ونې له ښاخه پيدا کيږي
په چمن کښي هم گلونه هم خارونه

هومره خلق هره ورځ له دنيا درومي
چه ئي نه په چا حساب شي نه شمارونه

يو يووار دی په هر چا باندي تيريږي/تېر شوی
هميشه په هېچا/به په چا نه وي دا وارونه

ډير له سره مي تودگي بازارگی تير دي
څوك دي نه کا په ما قنج و بازارونه

ډېر تودوکي بازارگي مي تر سر تېر دی
په رحمان باندي د تورو گذارونه

۷۳

پټ پناه مي په خاطر لګي اورونه چي را ياد شي د مئينو بشرونه
تل جرس درته واهه د کوچ ډليال شئ پرديسانو زلمو وتړئ بارونه
راشه ورشه حال يې وګوره چي څه دی پر مئينو باندي پريواته قبرونه
تاچي دا شېرين بشر خاورې بيابان کړه تر شېرين بشر يې وخاته خارونه

ها مئېن چي تا ليده اوس ليده نه شي دي بند شوي د لحد په حصارونه
يوه ذره د محبت ورکړه رحمان ته چي بې تا يې په زړه نور نه شي فکرونه

۷۴ که خدای غم د جدائيه ورته آسان کړ
دريغه وليدای يو ځل هغه مخونه
دراز قد دراز مژګان درازې زلفې چه دراز لري مژګان دراز قدونه
د آسمان شمس و قمر به ترې قربان کړم وړې شونډې وړه خوله واړه غاښونه
هم د زمکی په سر واړه سره ګلونه
چه ئي ووينم په مخ مي اوښکې درومي د پسرلي له مخه ووري بارانونه
که يو ځله ئي مخ ووينم په سترګو ما په زړه کي قبول کړيدي نذرونه
د هجران په شپه سوړ کټ راته سور اور شي يو زمان مي باندي نه لګي اړخونه
ښاماران دي د چنډنو په ښاخونه
چه په سپينو اننګو دي زلفې زانګي و رحمان وته آسان دي نور غمونه

۷۵
که ستا خپله سيه رويي نه وي دښمنه آيئنه زما د زړه نه ده خچنه
ته چه ما وته په نظر د عيب ګورې دغه واړه عيب ستا دی اې عيبجنه
خپل صورت په آئينه کښي هر څوك ګوري که (چ)څهره/ثېره د چا صفا ده/وي که ريمنه
چوهاړي د حلال خور په نامه بولي
ته چه بد له بله وايې زه ويرېږم له ښو خلقو بد ګوئي نه ده ممکنه
تر هغه به ړومبی عيب ستا څرګند شي چيري خپله بدي نه کړې معينه
و هر چا و ته چي کړې د چا غندنه
هر څه/رنګ تخم چه کرې هغه به يوسې/اخلې چه هر چا وته دي کړې ده غندنه/خندنه
خپله خپله ميوه نيسي هره ونه
که له خپله عيبه ځان ژغورې رحمانه د هيچا له عيبه مه کوه پوښتنه

نه مومي ځوك خوند د بل د خولې له انګبينه
روغه خلقه شوه د رنځورو تماش بينه
مرد بوي چه واخلي د غم پيټی له غمګينه
هر چه و ماراکا يو پيغام له نازنينه
۷۷

څو به مي تل ځاځي د غم اوښکي/ويني د زړه له آستينه
ته ئي نګهبان شې يا اله العلمينه
وخت دی که مدد کړې يا ميران محی الدينه

تر ناپاکو نارينه ؤ، وي/ده بِهتره
د ديندارې ارتينې له يوې ګوښې
نيکو کار سړی بهتر دی که خورد سال وي
بد کردار که صد ساله وي و رحمان ته
نسکور پروت ئي د عورتي په سينه
پټ دي نقش د زړه رخت دی/وي رنګينه
له ناکامه دي خرقه کړه پشمينه
څه خو ونيسه و ځان ته آئينه

يادوې په خوله مکه او مدينه
زوړند سر لکه غنچه مراقبه کړې
د اطلسو قبا غواړې نه ئي مومې
عبادت دي څو تيری تر معصيت
کا/کړ(ي)
کينه بده ده بې شکه جنګ حرام دي
د مردانو کار له نفسه سره جنګ وي
راشه نجومي زما د يار فال وګوره بشينه

نه له نفس وله شيطان سره کينه
نه زنان غوندي له نقش و نګينه
پاك دامنه پرهيزګاره ارتينه
صدقه شه سل بې دينه نارينه
تر سپين ږيريه بد کرداره ديرينه
څرګنديږي لکه طفل شبينه
تللی يار به کله له سفره را
۷۸

هرچی خپلي ميني خوارکړ خوار يې مه ګڼه عشق د رحمت ابر دی غبار يې مه ګڼه
کله تور سنبل کله تور مښکه کله عنبر شي زلفي که د مار په څېر دي ماريې مه ګڼه
يو مخ يې د سوز دی سل مخه (يې) د ساز دي عشق په اصل نار دی نار يې مه ګڼه
ډېر بيدار ويده دی لکه بت په غټو سترګو بت که درته غټ ګوري بيدار يې مه ګڼه
مراد خو يو اثر دی د خوبانو له رخساره هرچي اثر نه لري رخسار يې مه ګڼه
خار چي په ګل پوري (وي) د ګلو په حساب وي څه وشو که نام د خار دی خار يې مه ګڼه
پوه خلک هغه دي چي اقرار په ناپوه کا هرچي ځان هوښيار ګڼي هوښيار يې مه ګڼه
بد خو هم هغه دي خپل بد ور څرګند نه وي هرچي ځان بد کار ګڼي بدکار يې مه ګڼه

هرچا چي اقرار د يار له زلفو سره وکړ تل به نا قرار وي په قرار يې مه
ګڼه
هرچي کمال غواړي کميني (دي) درحمان کا عين دغه چار ده بله چار يې مه ګڼه
۷۹ بيا دي مخ دی جار وتلی څه بلا څه حکمت د يار په مينه کښي خدای
شوه کښېښود
ورځ چي واوړي دغه هسې نه وي څه وي دا باران نه دی چه ووري له آسمانه
دا زما په يار کښي مهر و وفا نشته دا بلا له کومه لوري را پيدا شوه
چه ئي هيڅ له خدايه ترس او ويره نه لکه نن چي د خپل يار و ماته شا شوه
شي که دنيا واړه بې مهره بې وفا شوه
چه ئي حسن وته يي ګورم حيرانيږم په نصيب مى يوه هسي دلربا شوه
څه د حد و د حساب خبره نه ده را څرګنده يوه هسي تماشا شوه
قراري مي په طلب کښي شوه بې صبري مي تر حسابه زياته لا شوه
حرامه/ئي حرام شه بېغمي مي په مذهب کښي ناروا شوه
چه راکښلی مي پرې غشی د دعا وه هغه نښه مى و نه ويشته خطا شوه
لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصله هسي پوچه بې حاصله مي دعا شوه
عاشقي چه مي له خلقو په غلا غلا کړه هغه غلا مي په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسيه معاملو مومم چه مي نقده په ورغوي کښي نسيا شوه
درد بيرته جاروتو شه راته پورې په نصيب مي بله نه وه دا وه دا شوه
يوه (برخه)بخره هر سړي لره خدای زما برخه آشنائي د خپل آشنا شوه
ورکړه معشوقه چه مي په مثل د عنقا شوه
د تدبير په دام به څه شکل کښيوزي لکه نن ي د خپل يار وماته شا شوه
ورځ چي واوړي دغه هسي نه وي څه وي عاشقي نه وه په باب زما کيميا شوه
چه ئي زر کړو زيړ رخسار زما د خاورو چه عاشق لره هم درد شوه هم دوا شوه
د مرغانو په رحمان باندي ژړا شوه

۸۰
ای د نفس او حرص په هوا لېوه په ظاهر صورت ملک په معنی دېوه
شدادي خصلت دي ونيوه د ظلم خبر نشوې د مسکين د زړه له غرېوه
تا چي مخ د فرعون په دود تور کړ په دي خوی به برابر نه شې له نيکېوه
پر وجود به دي څه رنګ حاصليږي چي لېږې د يار له دره دد و دېوه
په ظاهر صورت تندرست په روح رنځوره دریغه وسوی تر دغه پوست لاندي
معتېوه
د نېست□ له مکافاتو هغه خلاص شول چي هستي يې د فنا په مخ ايرېوه
اور دي پاخاوه له خوبه (باور وکړه) ورحمان وته په خپله په نارېوه
۸۱

دغه پسه بیا به څه کړې راته وایه　　زړه په غوړو غوښو مه تړه همایه
چه بیدار وي و غلیم وته له ورایه　　اي په تخت د اورنگ زیب ناسته گدایه
د چارپایو چاري مه کوه دو پایه　　څو سفر دي کړی نه دی له دې سرایه

٨٢

په حالت د عاشقانو نظر بویه　　په زیارت د شهیدانو گذر بویه
بې مرشده څوك خبر د مرید اخلي　　غوږ په غم د فرزندانو پدر بویه
بې ریباره رسیده و یار ته گران دي　　په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه
بې هنره چا دولت موندلی نه دی　　په خدمت د صاحبانو هنر بویه
ستا له سترگو مي هر گور ملاحظه شي　　له دې هسې سیاه دلانو حذر بویه
ښه چه سترگې خدای ملالې کړې د ترکو　　لږ په زړه د ظالمانو اثر بویه
　　دغه تاج د بزرگانو په سر بویه
ستا په داغ به هر یو زړه مشرف نه شي　　بادشاهان له گدایانو خبر بویه
چه خبر د رحمان نه اخلي یار بد کا

١

## ی

زړه مي ورکړ و خودرای　　هر چه شي/شوه تکیه په خدای
په سودا د عاشقئ کښې　　یا به شاه شم یا گدای
یا به کښېنم و دونهئ ته　　یا په سیوري د همای
چه خدای کا هغه به وشي　　نه بل خدای لرم نه ځای
بې دلبره به ور نه کړم　　بل و هیچا د زړه رای
پاي بوسي به ئي پرې نه بږدم　　څو مي رسي دست و پای
یا خندا ده په دنیا کښې　　یا ژړا ده په وای وای
تر دا دوو چارو پههور ته　　نور څه نشته به دا سرای
عاشق بویه چه صادق وي　　نه خود کام و نه خود رای
خدای دي نه کا څوك په عشق کښې　　جو فروش گندم نمای
زه رحمان په کار پوهیږم　　که مي مل شي کار فرمای

٢

کاشکې زه خاورې ایرې د ستا د در وای　　چي قدم دي همیشه زما په سر وای
خو یو ځله زما و ستا و بله مخ شوای　　نور مي موخه ستا د غشیو په ټټر وای
تمام تن مي د رانجو په څیر اوړه شوی/وای　　خو په ما د تورو سترگو یو نظر وای
په زیړ رنگ په سپینو اوښکو به ما بیا موند وای　　که د ترکو ملاقات په سیم او زر وای
ملامت به په ما څه لره وایه شه وای　　که د ستا له دلبر نه څوك خبر وای
مرتبه که ستا د عشق شي ور څرگنده　　ملایک به واړه وائې چي بشر وای

يو ايشه داغ په سينه باندې بشکاره چشوی — چه مولى/لا تر مرغونې نيډي وارځانه (و)
زمېږدلي ولې سر چشمه د دنيا نشته — که پادشاه د ولايت دى که گدا دى
لو خاونار په زيار سرحګر غوندې بانډې — تشنه لب کې پروت مې ګوښې يم تر غوړ پړوی
ولوېده شي — د دې دهر خس حرام شه که ويړيا دى
ستا په باندې کښې غم په سورو دې په شر يمان ته ابر خيرات لا شوم لوى که پې ځانته دى تر دا
فراغت پرې باندې ولې حرام نه وي — چه داخل په سراچه د دې دنيا دى
يا مجنون د صاحب په لیله خونړۍ څه کاچي جهان ستا په گولو ملګون ولې لا دى
۳
عشق يو هسې رنګ افسون په عالم پو کړ — چه عاشق په تورو سترګو نابينا دى
دهر چا ئې (برخې) بخري ورکړې/برخه ورکړه ګوښې ګوښې — خپل قسمت د هر سړي جدا جدا دى
ورکړه راکړه/راپيروده همګې/ټول د بل په لاس دي — دلته/هلته دخل نه د ستا دى نه زما دى
په هر څه چه د صاحب د زړه رضا شي — په بنده که ناروا دى هم روا دى
خواه نا خواه که ئې رضا وي او که نه وي — د قسمت رسد رضا و نا رضا دى
ځان جهان سپارلى بويه و هغه ته — چه ئې حکم جاري شوى په هر چا دى
د هر چا په لاس چه حکم حاکم ور کا/کړي — جهان واړه د هغو/هغه په مدعا دى
که لښکرې ورسره وي يك تنها دى
۴
هسې رنګ نعمت را کړى خداى و ما دى — چه دا هسې معرفت ئې پرې پيرزو کړ
يو خو دا چه ئې په شکل د آدم کړم — چه هيڅ څيز بها ئې نشته بې بها دى
لاس و پښې و غوږ و سترګې خوله او ژبه — دويم دا چه محمد(ص) مې رهنما دى
آسمان زمکه نمر سپوږمۍ و روښان ستوري — يو صورت مې په څو اسمه مسما دى
شپه و روځ د ماه و مهر له پرتوه — درست جهان مې و نظر ته تماشا دى
په شپه مشک/مښک په ورځ کافور را باندې ووري — مخ د زمکې راته درست نقره طلا دى
چه/په هر دم زندګاني بخښي و ماته — درست صورت مې په کښې غرق سر تر پا دى
د چمن و سرو ګلونو ته چه ګورم — هر نسيم د يار له لوري مسيحا دى
د ګلګونو ميو ناوې راته ناسته — هرهر ګل راته له ورايه په خندا دى
خپلې وينې په ورغوي کښې نيولې — زنګاري قميص آغوستى د مينا دى
د شه/شنه رود په غاړه ناست سرود په لاس کښې — هر ساغر د مى فروشو جان فدا دى
سپين مخونه سرې لښتۍ دې د دلبرو — هر مطرب لکه بلبل هسې ګويا دى
هر ديدن يې د آفتاب په څېر رڼا دى
په رحمان باندې منت د پاک مولا دى

بيا به تاخت كا په كوم غولي وار د چا دى    دا آفتاب غوندي روښان رخسار د چا دى
دا بې درده و بې صرفې ګذار د چا دى    دا دننه په حرم ګلزار د چا دى
دا چه ما آزاروي آزار د چا دى    دا نا ترس و بې پروا نګار د چا دى
۶

غواصان كه ګوهر غواړي ګوهر دا دى    بيدلان كه دلبر غواړي دلبر دا دى
زما يار غوندي به بل يو دلبر نه وي    د جمله ؤ دلبرانو سرور دا دى
خوند د لبو او د چاه زنخدان ئي    راشه ګوره زمزم دا دى كوثر دا دى
چه يي/دي وصل او هجران وته نظر كړم    زه ګمان كړم جنت دادى سقر دا دى
ته خطبه په منبر څه لولې خطيبه    قدم كيږده په ځان باندي منبر دا دى
د مكې/كعبې سفر آسان دى مرد هاله يې/هغه دى    كه/چه له ځانه سفروكړې/كاندي سفر دا دى
هر منعم چه دلجويي د قلندر كا    هغه نه دى قلندر قلندر دا دى
چه توانګر د قناعت په خزانه شي    بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دى
دا هنر نه دى چه خاوري څوك سره زر كا    چه زر خاوري كا رحمانه هنر دا دى
۷

هغه زړه چه ستا د عشق په اور كباب دى    د يارانو په يار كښي څه حجاب دى
حجابونه له اغيارو مناسب دي    نور ښايست د جهان واړه په حساب دى
بې تا چه ښايسته يې بې حسابه ښاپيړ كه هرڅو ډيرې ښايسته دي    په هغو كښي هم ستا حسن انتخاب دى
لكه ګل چه تر آفتاب پورې خجل دى/وي    دغه هسي ستا تر مخ پوري آفتاب دى
دا د ميو څه مستي او سرخي نه ده    تيغ د سترګو دي په وينو كښي غرقاب دى
زه رحمان به ج/ځواب څه كوم و يار ته كه مرهم ور باندي كيږدې ډير ثواب دى    و ژونديو ته د مړيو څه ځواب دى
۸

په نرم ئي غلط مه شه سنګ در آب لکه عمر چه دي تلونی په شتاب دی
دی

۹

چي تر سنگ و تر آهنه ئي زړه سخت دی زړه هغه لره ورکړی ما کم بخت دی

خدایه کله به هغه غل راته ایل کړې چه لوټلی ئي زما د خاطر رخت دی

همره غم به نور په هیڅا باندي نه وي لکه غم چه د خپل یار په ما یک لخت دی

مګر بیل په تیره تیغ شي یار له یاره ګڼه ښاخ له خپله ښاخ سره درخت دی

د پالنګ او د پیړ حاجت ئي نشته د یارانو نشستن د زړه په تخت دی

چه له ډیره درده وخت پیژاندی نشي په رحمان باندي بې یاره هسي وخت دی

۱۰

ستا له لاسه په ما جور دی که داد دی زما مراد خو واړه ستا د خاطر/زړه مراد دی

ستا په مینه کي زما له مخه تښتي که آفت دی که آسیب دی که فساد دی

هر اهداد چه را کاوه شي ستا په مینه په لیمه زما قبول هغه اهداد دی

که تمام جهان مي پریوزي په لیمه کښي بې تا نه را څرګندیږي نه مي یاد دی

ما چه غوږ دا ستا د عشق په ترانه کړ نصیحت مي نور د زړه په غوږو یاد دی

اوس زما له ننګ و نامه سره څه دي چه دي نام/نوم د عاشق را باندي زیاد دی

هر ګلشن چه له ګلرخه بې بهره وي د عاشق په نظر غولی د صیاد دی

د رحمان و توان ته ګوره هومره ناز کړه څه د اوسپنو روغ نه دی آدم زاد دی

۱۱

که ئي مهر و محبت که ئي عناد دی ما د یار په یار کړی اعتماد دی

زه و یار که په تن دوه په معنی یَو یُو هزار خوني واړه ښهر یو بغداد دی

هیڅ بیلتون زما د یار وبله نشته دی کار همه واړه موقوف په خپل میعاد

هیڅ موقوف د معشوقې په حسن نه دی د عاشق خاطر په خپلي میني/خپله مینه ښاد دی

زه خپل آه آتشین له خدایه غواړم د آشنا خاطر که موم دی که فولاد دی

چه پریشان د یار د زلفو په څیر نه وي جمعیت د هغو زړونو لوی فساد دی

چه د آه و د فریاد طاقت ئي نه وي هر سکوت د بې طاقتو آه فریاد دی

سل په دا رنګه نومونه د عشق نور دي لکه نوم چه د مجنون او د فرهاد دی

چه ئي زړه شي هلته کښېني هلته پاخي عشق د عقل و د هنر کره داماد دی

بادشاهان په عاشق کښي ملنګان شي ما و تا غوندي وګړي د چا یاد دی

چه پریشان د یار د زلفو په څېر نه وي جمیعت د هغو زړونو لوی فساد دی

که ربښتیا له خراب/خرابیه سره ګنج وي خرابات دبې بنیادو بېخ بنیاد دی

که کمال د کمین په اندازه دي/وي فوقیت د شاګردانو په استاد دی
چه په یار پسي تر ځان تر جهان تیر شي اعتقاد دی په رحمان زموږه/ځمونږه هسي
چه دا نور شاعران کاندي هغه نه کا رحمان کړی نوی نوی اجتهاد دی

۱۲

په خاطر باندي مي ستا د غم غبار دی انبار دی همیشه مي په زړه پروت انبار
رهبري که ګمراهانو ته کړي خضر دی عاشقانو لره خضر ستا ریبار
که رهبر وي ګمراهانو لره خضر
ګوندي چیري څوك د خدای په در قبول وي ستا له لاسه مي فریاد په هر دیار دی
د شهید و پرهارونو ته نظر کړه هسي رنګ له دواړو سترګو مي خونبار دی
هسي رنګه مي له دوو سترګو خونبار دی
چه د غم په بار ئي زړه دی زما کښلی هم هغه مي په زړه کښلی په بار بار دی
چه هر دم مي د غمزو په تورو وژني لا مي زړه د هغو سترګو منت بار دی
دا آسمان دي د هغه په مدعا وي چه په ما باندي ئي کړی ستا اخبار دی
که یار سل ځله جفا ور سره کاندي د رحمان دا هسي کله اعتبار دی
۱۳

چه زمين شه بر قرار دی لعل ووړ شه بزرګوار دی
انګور ګوره نګونسار دی هلك نمر څره/سره انوار دی
ابر څورب دی غبار دی چه لوی فيل ئي بار بردار دی
۱۴
زلفې دي له ډېرې درازيه پای تر سر دي يا دبنفشې لښتې خورې په صنوبر دي
لب دي آب حيات دي يا شکرې يانبات دي يا خو زه غلط شوم تر همه واړو بهتر دي
قد ته دي څوک نه شي رسېدی له بلند ولي چي معراج وته خاته د پېغمبر دي
ماچي ستا شايست و لمر سپوږم سره په تول کړه تللي په ميزان کي تر آسمانه سپوږم لمر دي
څاڅکي له آسمانه په هرچا ووري يکسانه پرخه په واښه شي په صدفو کي ګوهر دي
بخت دی چي يې څوک متمکن کړه په تخت باندي څوک دغم په خار سره پاره پاره جګر دي
باد چي دي په زلفو باندي قصد د پرېشان کړ ځکه يې ګردونه د جهان واړه په سر دي
هله به سړی شې چي دي نوم عبدالرحمان شي اوس سړی په څه يې كه دي لوستی زيروزور دی
سپيني اوښکې، زېړ رخسار د مېني له دولته ای رحمانه دا د عاشقانو سيم و زر دي
دا خو زه له کمبختې له تا زار کړم ستا له نيکه خوي کاڼي بوټي هم خبر دي

۱۶

نه چه هر سړی ولي او پیغمبر دی　　　دا په وايئ چه آفتاب د نمازدیگر دی
نور جهان واړه د تورو کاڼو غر دی　　　په آسمان باندي ختلی لکه نمر دی
نه په هر یوه سړي پسې لښکر دی　　　ما موندلی په دا بحر کښي ګوهر دی
هسي نه چه جهان واړه برابر دی　　　رحمان کوږ دستار تړلی قلندر دی

درد وغم د عاشق جوړه سره که　　　خدای ورکړی و دنیا ته يې سرور دی

١٧

دواړه سترګې مي کړې د ستا په لور دي　　　مدام ډوبې د فراق په آب شور دي
زه یو سپی یم چارچشمه د ستا له سپیو ځلور دي　　　چي مي ستا و درته دوه سترګې
چې مې دوه سترګې د ستا په لور ځلور دي
کنډولي مې ددوو سترګو ستا په طمع　　　وهر در وته نېولي کور په کور دي
چي مي خال/خیال د ترکو ولید په خپل زړه کي نسکور دي　　　دواړه کسي مي و زړه وته
اعتبار د زمانې په اشنا مه کړه　　　همګي واړه د خپلو رختو چور دي
ما قبول د رقیب ناز کړ ستا دپاره ورور دي　　　سود وزیان په داجهان کي خور او
په رحمان باندي ګمان داهسي مه کړه نور دي　　　چي بې تا په نورڅه غولېږي هغه

١٨

ستا له غمه مي په سر کښي هسي شور دی　　　ګویا میشت مي په سر ښهر د لاهور دی
په افسون او په جادو د تورو سترګو　　　خراب زړه مي له جمله عالمه تور دی
که مي زړه له غمه چوي/وچوي راته وايئ نور دی　　　غم د هجر دغه مه ګڼه لا
د هجران په بیمار کښي را معلوم شه مور دی　　　چه اخیستی مي آزار د پلار و
دا دنیا په مثال کور شوه د غمونو　　　چه په هسي کور نازېږي هغه کور دی
دا جهان نه د چا خپل دی نه به خپل شي زور دی　　　چا په خپله رضا پرېښود چا په
چه د مرګ په پوروړیو کښي څوك/یو ومري　　　دی د واړو پوروړیو زوی او ورور دی
که رحمان په عاشق ملامت/بې عزت کیږم پیغور دی　　　ما په سترګو قبول کړی دا

١٩

که دلدار په دلدار زما قدم ږدي　　　ګویا هر قدم په لاري د حرم ږدي
ځاي لري که بې منته بوسه راکړي ږدي　　　کوم کریم په چا منت د خپل کرم

معشوقه مشفقه بويه مهربانه ږدي — نه قارون چه په ځان اسم د حاتم

هسي پټ لرم دا زيړ رخسار له خلقو ږدي — لکه زر چه څوك له خلقو پټ پنهم

خدای و ما وته ګلونه د جنت کېړل ږدي — که داغونه مي په زړه باندي د غم

هيڅ مانه دي څوك له مستو سترګو نه کا لاره سم ږدي — کوم يو مست دي چه قدم په

راحت نه دی بې زحمته چا موندلی مرهم ږدي — کوم طبيب دی چه په روغ صورت

زه هرګور تر خپل صنم پوري شرميږم ږدي — برهمن چه سر په پښو د خپل صنم

و آسمان ته لاس د عقل نه رسيږ ي قدم ږدي — دا خو عشق دی چه په عرش کرس□

زه رحمان ئې تاج ګڼم د يار له لاسه — که مي پنډ په سرد جور و د ستم ږدي

زه رحمان يې شدني په ځان ګڼمه — که يار سل ځله ناشدي چارې کاندي

٢٠

د دنيا کارونه واړه غوُلول دي — دا نا اهل همدمان دي نه پوهيږم

هيڅ مزه په دا جهان کښي پاتي نه شوه — دا ګمان په هيچا مه کړه چه مي خپل دي

دا يخ څوری/ي په اوبو پوري کول دي

پوزه غوږ د غوښو شته په هر چا پوري — که د شرم پوزه غوږغواړې باطل دي

پس له شامه هسي وايه چه د بل دي

که دي دوه کاسې دانې وي په کندو کښي — بل به تا ته هسي وايئ چه ستا شل/سل دي

که ته دوه يا درې عيبونه د بل/چا شمار کړې — د سړې اوسپنې خوشي ټکول دي

نصيحت د ناصحانو اثر نه کا — که مُچ□ درحمان پنډې په ګوګل دي

٢١

٢٣

سپين رخسار و مشکين خال وبله ضم دي — يا محمود و اياز ناست سره همدم دي

که دي مخ په زلفو پټ شه باک ئي نشته — د حيات اوبه هم پټې په تور تم دي

پيدا شوي شام شفق و صحبدم دي

ستا له زلفو له رخساره له سرو شنډو — يا غوټئ په غنچه کي د شبنم دي

په دهن کښي دي غاښونه تجلی کا — چاړه غوښې له قديم سره په غم دي

نه چه اوس زما زړه غوڅ ستا په غمزه دی — د نرګسو غوړيده د جوي په نم دي

ستا جفا و وفا واړه منقسم دي

بې ژړا و چا ته نه ګوري سيه چشم — د رحمان د شعر کوکي په عالم دي

راحت نه دی چا موندلی بې زحمته

ستا د حسن د تعريف له برکته

چه د ښنګه مي دلبر په لاس کښي جام دی
بې غمي په دنيا چيرې ده رحمانه
مدام کله وي دنيا د دنيا دارو
نن اورنګ د زمانې زما غلام دی
د (هرون)هارون څرخ پای نيلي دی د سپهر
بې له عشقه چه دولت ئي مستدام دی
د دنيا چارې په مثل دي د سيورې
ځو به دو کا چه ئي دو په سر د بام دی
که ئي صبح ښايسته ده خنده رويه
د آفتاب په مخ د سيورې څه مقام دی
نه په مهرکښي آرام شته نه په ماه کي
بيا ئي هسي په هر صبح پسي شام دی
ته چي خپل فراغت غواړې په جهان کي
په دنيا راغلی هر يو بې آرام دی
فراغت خاطر را وښيه کدام دی
يو بې غم دي څوك را وښيي کدام دی

۱۷

ما دا ستا لمن ته اچولی دا خپل ځان دی
ستا دی ځما نه دی که دانا دی که نادان
خپله سرکښي/کشي لويي مي واړه/همه واړه فراموش شوه/دي
هسي مي زړه ستا دې لوي قامت وته حيران دی
بې له تا که سير د ګلستان کړم د ګلونو/که د ګلو
نه پوهيږم هيڅ چه ګلستان دی که زندان دی
چا پيژاندم زه چه عاشق نه وم په جهان کښي
اوس مي ستا له رويه نوم رسوا په درست جهان دی
ډير همزولي تير شوه د مجنون بې نام و نقشه
عشق دی چه عاشق لره هم نام دی هم نشان دی
لوی تر کوم چينجي دی پروا نه چه افسانه شه
واړه په سبب د عاشقيه نمايان دی
واړه د خپل ځان په نظر ګوره که دانا يې
اي عبدالرحمانه درست جهان عبدالرحمان دی

۲۴

نه ئي زيان نه ئي زوال نه ئي نقصان شته
نه ئي مثل نه مثال نه ئي مكان شته
پاك ئي وګڼه بې شک او/شكه بې ګمانه
نه ئي څوك په سترګو ويني نه ليده شي
كه څوك وايئ ليده نه شي ليده نه شي
منزه دى له جمله ؤ جهتونو
له زرګونو صفتونو راشه ګوره
چه يو نوم ئي په نومونو كښي سجان دى
هم د هر يوه سلطان په سر سلطان دى
هغه كار واړه و ده وته آسان دى
ده آفتاب را خيژولى په آسمان دى
ده پټ كړى نمر په ابر كښي پنهان دى
ده په شپه كښي پيدا كړى ماه تابان دى
نزول كړى ده په مونږ باندي باران دى
ژوندى كړى ده په روح تمام جهان دى
ده و سنګ وركړى رنګ د ارغوان دى
ده له خاورو پيدا كړى ګلستان دى
ده له اوره پيدا كړى زمستان دى
ده له سنګه پيدا كړى در مرجان دى
دى د هر يوه مخلوق روزي رسان دى
ده وركړى هر مؤمن لره ايمان دى

ده عيسى لره وركړى دا مكان دى
ده موسى مشرف كړى په دا شان دى
ايښى ده په هوا تخت د سليمان دى
ده په خضر باندي كړى دا احسان دى
هر توانا د ده تر توان پوري ناتوان دى
ده وركړى په كښي اور لره مكان دى
هم ئي زوړند په ركوع سره آسمان دى
هر ګياه ئي په تسبيح سره زبان دى
كه مَلَك دى كه پيرى دى كه انسان دى
هر مرغه ئي په چمن كښي ثنا خوان دى
نه له هيڅا واقع شوى دا بيان دى
لكه ده سره/څخه چه قدر دخپل ځان دى
معرفت ئي هسي بحر بې پايان دى
او نه دى د چا په څېر د چا په شان دى
دي بې زيانه بې زواله بې نقصان دى
دي بې مثله بې مثاله بې مكان دى
له هغه چه د چا شك د چا ګمان دى
او بې چونه بې چګونه نمايان دى
او كه وايئ وهر چا وته عيان دى
او بيا هر جهت په ده باندي ودان دى
چه ئي كړى نيم صفت عبدالرحمن دى

٢٥

٢۶

تن مي ستا  له غمه پاښه د خزان دى
چه په سترګو كښي مي جوړ د درو كان/رود روان دى
چه هم  ويني  ترې  بهېږ ي هم خندان دى
چه  ځان درست راته په شكل د جانان دى
ما موندلى ځني عمر جاودان دى
ستا د لبو په مدد آبحيوان دى
معطر په بوي د مصر درست كنعان دى
محبت به سل حجابه كښي عيان دى
عشق د عقل په پرده كښي نمايان دى
زه له ډيرې ځلې وايم چه نهان دى
چه هر موي ئي په څو رنګه په څو شان دى

كه څوك وايئ چه ليده شي تش ګمان دى
سور په خپلو وينو لعل د بدخشان دى
لكه غم چه د هجران په هر زمان دى
نور مشكل واړه په ما باندي آسان دى
چه ستا غم (له)د حد په هورته راته ګران دى
څو مي يو نفس باقي په دا جهان دى
ستا له غمه مي منزل د زړه ويران دى
هسي زړه زما بې سر و بې سامان دى
زما هسي خراب زړه پسې پريشان دى
چه ګذر ئي ستا په چاه زنخندان دى

ستا دعشق حرفونه تور نه دي ګلګون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له ميو
د دنيا چاري همه واړه فاني دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي
چه ئي هيڅ بها زلميو څخه نشته
بادشاهان په يوه دم كښي ګدايان كا
د رحمان د زړه خوناب مګر قبول شه

هم په دا چه نوشته په جګر خون دي
چه ئي خاورې د فرهاد و د مجنون دي
دا د ستا جور و جفا ولي افزون دي
چه په سره كفن له زمكې را بيرون دي
جونه نه دي سكه ګنج د قارون دي
ما ليدلي فسادونه د ګردون دي
چه مخونه د دلبرو پرې ګلګون دي

٢٨

غم دي هسي غلبه شه په ما باندي
له زګيروو/ويه نه مي نور خلق په عذاب شه
زه دستا په غم كي شمعه غوندي ژاړم
زړه مي ستا په لوري هسي آويزان دى
ما دي ستا د انديښنو په اور كښي سوېې
دا دستور دي چه لوي غم په سړي ورشي
هر چه ما په نصيحت له تا جار باسي
سره لنبه ګوره چه څه كا په وچ ډُكي!

چه مي ځاي نه شي دننه نه دباندي
تل د وچو له كبله سوزي تاندي
ته زما په ژړا/غم كښي صبح غوندي خاندې
لكه زلفي دي په مخ دي آويزاندي
د دنيا انديښنې واړه لكه سپاندي
نور غمونه ئي همه شي تر پښو لاندي
بيا د ستا په لوري درومي تر/له ما وړاندي
مخ د يار په رحمان هسي چاري كاندي

٢٨

خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده　　د آسمان د ملائکو پرې آمین دی
د سرکښو سر که ورشي تر آسمانه　　د هغو په بهتر باندي يقين دی
چي/که ښیوه ئي وي په سر کښي او لوئي کا　　حق تعالی کمال ورکړی و کمین دی
که صورت ئي د سړي سړي باله شي　　که زړوکی ئي خیرن وي زړه ئي سپین دی
که رحمان څخه متاع د دنیا نشته　　په دوه ورځې پس ئي ځای زیر زمین دی
د دې کار په کننده ؤ آفرین دی　　د رحمت لیاقت نه لري لعین دی
د هغو د سعادت ستوری قرین دی　　په معنی کښي سړی نه دی شیاطین دی
چه وچ ټوك مي په دهن کښي انگبین دی
د زاړه پوزي ټوکرکی ئي قالین دی　　شکر دا چه نه خودرای و نه خودبین دی
٢٩

مخ د یار شمس و قمر درې واړه یو دي　　قد د سرو و صنوبر درې واړه یو دي
حاجت نه لرم په شهد و په شکرو　　لب د یار شهد و شکر درې واړه یو دي
که بې یاره په بستر د پاسه پروت یم　　نار و خارو دا بستر درې واړه یو دي
چه ئي در و هم دیوار وته نظر کړم　　باغ بوستان و دغه در درې واړه یو دي
خدای د یار له هجره هېڅوك خبر مه کړه　　تاخت و قتل دا خبر درې واړه یو دي
چه غبار ئي د کوڅې را باندي راشي　　دا غبار مښک و عنبر درې واړه یو دي
هغه دم چه سړی درومي له جهانه　　تورې خاورې سیم و زر درې واړه یو دي
قلندر چه په رښتیا قلندري کا　　خان سلطان و قلندر درې واړه یو دي
ور دي نه شي په پرد زمکه هېڅوك　　کور و کر و مبصر درې واړه یو دي
چه دي نه په کښي یو یار نه دي آشنا وي　　هغه ښهر ، بحر و بر درې واړه یو دي
په دکان د نابیناؤ جوهریانو　　خر مهره لعل و گوهر درې واړه یو دي
پسران دي عار زما له عشقه نه کا　　پاک عاشق پسر پدر درې واړه یو دي
په سبب د ظالمانو حاکمانو　　گور و اور و پښاور درې واړه یو دي
غزا وشوه که ځان ستائي و رحمان ته　　بې هنره گاؤ و خر درې واړه یو دي
٣٠

چه دا هسي لاس په لاس دنیا پرېښودي　　میخواران که ئي خبر شي له مست نه
دا دنیا په مثال پوله مرگ سیلاب دی　　څه چوا چندڼ په ځان پوري مښو دي
جل زلمي لا واده نه وي سره کونډ وي/شي　　د سیلاب په مخ کښي څه پوله ايښو دي
　　دا رنگ چارې د مرگي په/د خرخښو دي
قافلې چه په دنیا کښي شوې داخلې　　بیا هم هسي معلومېږي چه د لښو دي
دا سفر به په هغو باندي آسان وي　　چه تر کوچ پخوا په زیرمه د توښو دي
چه بې وقته ارمان کا په وقت اوده وي　　د هغو عالمو ږیري د وکښو دي
په هر شان چه یار خو ښیري زه هغه کړم　　خپلول د صاحبانو په پېښو دي
د یار غم مي لکه تاج دی/وي په سر ايښی　　نور غمونه مي همه لاندي تر پښو دي
　　دلته څه د عاشق ښې د ښو دي
معشوقې په عاشقانو خود پوهېږ ي　　د رحمان د میخانې شراب د څښو دي
په خپل ځای به يې هرهر کلام په کار شي　　رحمان ... طالب لره د ښکو دی
٣١

زه بلبل ستا د وصال يم بوستان څه دی     ستا د وصل په نسبت ګلستان څه دی
چه آشنا شي ستا له دره له ديواره     انتظار ئي په روضه د رضوان څه دی
چه روزي ئي شهادت شي ستا له تيغه     احتياج ئي په چشمه د حيوان څه دی
چه مسکن ئي د زړه ستا د زلفو خم شي و هغو ته د عطارو دکان څه دی
بوالهوس که بوسه غواړي له تا څه شو     هر رنګ هر رنګ ويل کاندي نادان څه دی
هر چه لاندي خپل وجود تر خپل قدم کا     عرش ئي لاندي تر قدم شي آسمان څه
زه چه ستا له غمه ژاړم آه فرياد کړم     دی
ځان جهان مي هسي ستا په مينه هير     برق و رعد چکاره دی باران څه دی
دی     نه پوهيږم چه ځان څه دی جهان څه دی
ته چه نه ګورې و ما ته لږ مي پوه کړه     په دا کار کښي دي ضرر و نقصان څه دی
زه بې صبره يم که مهر د ستا نشته     له دې دواړو دي په زړه کښي ګمان څه
که ستا سترګې دي قاتلي زه مقتول يم     دی
چه مي وينې ترو مي څه پوښتې له     وايه نور دي په خاطر کښي ارمان څه دی
حاله     له عيانه احتياج د بيان څه دی
هر چه وايې ستا رس□ د رحمان غاړه     و توانا ؤ ته حجت د ناتوان څه دی
٣٢

خښ مي ستاد ښو غشي په سينه دي     پورې اوورې/پور راپورې مي وتلي تر اينه
تل ئي مخ د يار په مخ باندي وي ايښی     دي
هسي نه چه زه نن ورځ په تا شيدا يم     هغه زړونه چه بې زنګه آئينه دي
لکه ستوری چه بريښنا کا په آسمان     ستا غمونه مي په زړه کي ديرينه دي
کښي     په ټټر مي ستا داغونه نګينه دي
درته وايم چه له آهه ئي پرهيز کړه     د هغو چه پوشاکونه پشمينه دي
که دا ستا رخسار سوزاني لنبې نه وای     ولي کسي زما تور سوي نينه دي
څه به سم په صبحدم ګورې و چا ته     چه دي سترګې په مې مستې شبينه
هغه سترګې چه پيدا کړې خدای     دي
خونريزې     بې غضبه په غضب او په کينه دي
شرابيان چه شراب مومي خو ئي     کله منع په اختر په ادينه دي
شومي     د رحمان خبرې ځکه رنګينه دي
چه تمام د خپل ځګر په وينو رنګ شه

ما ګڼلی دغه کار په ثواب نه دی
ما په ويښه دی ليدلی  په خواب نه دی

هيچا کړی دغه کار په شتاب نه دی
لا ئي هيڅ ځني  موندلی   ځواب نه دی
نور غمونه که په ځان د سړي بد دي
ددوزخ د اور که تاو له حده تير  وي
چه باله شي څوك په عشق کښي کم عقل
چه بې ياره و/زه جهان وته نظر کړم

د بل زخم په څير سهل و آسان نه دی
دغه راز و نور عالم ته عيان نه دی

۳۴
د عشق زخم څه د زخم په شان نه دی
عاشقان او معشوقې سره پوهيږي
عاشقي نه ده که ګورې حيراني ده!
يو عاشق دي څوك را وښيي په عشق کښي
همره اوښکې د عاشق په ګريوان ووري
دا هجران دی چه ئي مرګ په عاشق ګران کړ
۳۵
۳۶

کوم سړی په دغه کار کښي حيران نه دی
چه ئي رود په مخ د اوښکو روان نه دی
ته به وايې چه يو سيند دی ګريوان نه دی
که هجران ورسره نه وي/هم ځان ور څخه درومي هيڅ ګران نه دی
غم د ترکو بد  د  هيچا  په   ځان نه دی
برابر د بيلتانه د نيران نه دی
دا  کم عقل ډير هوښيار دی نادان نه دی
رحمان وايم  چه  ويران  دی  ودان نه دی

هر نګار  چه بې وفا دی نګار نه دی
هغه يار چي اخلاص نه لري يار نه دی
په تلخ د ميو مست خلق مي خوښ دي
ديندارې دنيا داري دي (څبله)ځبله لري
که روزګار دی په جهان کښي عاشقي ده
چه تصديق ئي په خپل زړه کښي محکم نه وي
په هر زړه چه د خپل يار د غم غبار وي
چا به کسب بې له عشقه نور څه نه کړه
معشوقه وفا له هيچا سره نه کا
د خپل يار/دلدار وصال د خدای په داد مونده شي

په رحمان باندي منت د معشوقو دی
په ګلزار کښي چه ګل نه وي ګلزار نه دی
هغه کار چي بې فايدې دی څه کار نه دی
هغه خار چه بوي د ګل لري خار نه دی
ما ليدلي هيڅ ديندار دنيادار نه دی
د دې نور عالم روزګار څه روزګار نه دی
دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دی
دغه ابر د رحمت دی غبار نه دی
بارې ګنج دی چه هر يو ته اظهار نه دی
ګڼه کوم  يو ددې رخت خريدار نه دی
دغه کار مي د هيچا په اختيار نه دی
د بې حسنو معشوقو منت بار نه دی

هغه کار چه بې بقا دی څه کار نه دی د هجران عمر د عمر په شمار نه دی
دا په عشق کښي سهل کار دی دشوار نه اعتبار د زمانې اعتبار نه دی
دی بې وقوفه زوی د پلار څه په کار نه دی
کم اندیشه که بیدار دی بیدار نه دی رحمان هیڅ له خپله یاره آزار نه دی

نه شها زما په سترګو کي جلوه کا ماه و مهر يې سېنه مخ يې آینه دی

۳۸

عاشقان دي په اور سوي دي که نه دي ستا د عشق په اور الوي دي که نه دي
زحمتونه د هجران واړه په عشق کښي تا و ما وته ښوولي دي که نه دي
په دنیا کښي خو یو سر و مال ویل شي دواړه ما په تا بایلوي دي که نه دي
تل د وروځو په لیندو د ښو غشي تا په ما باندي را کښلي دي که نه دي
چه مدام ئي زما زړه له غمه چوي توري زلفې دي پیچوي دي که نه دي
راشه وګوره احوال د عاشقانو مړه د عشق په تیغ کوټلي دي که نه دي
ناصحان چه نصیحت و ما ته کاندي چیري دوي هم مین شوي دي که نه دي
ښایٔسته که په ښایٔست ملایکه/کي ملایک وي په وکښو د زړونو روي دي که نه دي
بلبلان پسې ناري وهي رحمانه د بهار ګلونه شوي دي که نه دي

۳۹

دا ژوندي چه معلومیږي واړه مړ ه دي که څه دي هم هسي وایه چه څه نه دي
یا د باد په مخ کښي خاورې دي دا تورې یا د اور په مخ کښي واړه وچ واښه دي
د خپل عمر شپې او ورځې چه په زړه کړم هسي درومي ګویا بهنده/چه د سیند ګویا اوبه دي
غافلان که وینی اوري به ئي څه کړې دا ئي خوب دی نه لیده نه اوریده دي
چه د خدای له معرفته خبر نه وي هغه واړه که بیدار دي هم اوده دي
د رحمان د زړه له حاله خدای خبر دی چه په زړه کښې ئي د یار له غمه څه دي!

۴۰

په ظاهر صورت چه ستا د در ګدای دی چه ئي ستا له غمه سر په پشت پای دی
مجنون بید غوندي رونق د ګلستان شي د جمله ؤ ګمرهانو رهنماي دی
چه له غمه دي جرس غوندي نالان دی ستا د ورځو تور محراب لاندي ئې ځای دی
چه څوك زړه د ستا و تورو سترګو ورکا د هغو ناستې په سیوري د همای دی
چه مسکن ئي د زړه ستا د زلفو خم شي شك پرې مه کوه بې شکه چه خود رای دی
چه تا ووینی و ما ته نصیحت کا! که زر دار دي اشنایان د زر دارانو
په معنی کښي د جمله ؤ کد خدای دی د رحمان د آشنایانو تکیه خدای دی

کار همه واړه موقوف په کار فرمای دی
له جهانه ئي مطلب جهان آرای دی
۴۲

خدای پخپله د بې دستو دست و پای دی
هر مطلب د طالبانو په دا سرای دی
همیشه د یار په یار پسې وای دی

که د خلقو و نظر ته آدمی دی
هر چه ځان د یار په سپیو کښي داخل کا
ما دي خدای د یار له غمه بې غم نه کا
زه د یار په غم کښي زیړه څهره خوښ یم
زه ژوندون د یار و وصل وته وایم
ته چه ما منع کوې د یار له دره
زه د یار مینې په یار باندي شیدا کړم
چه وحشي مجنون ئي ښهر لره راووست
زر داران که اوبه څښي په جام د زرو
اورنگ زیب که د ډهلي په تخت نازیږي
چه له خپله کوره ووزي مسافر شي
چه ئي خاوري شي له خاورو سره ګډې
توره شپه په آشنایانو روڼا ورځ ده
نه دي سترګې پوزه غوږ د کم شناختؤ
عاشقان ئي د دنیا له غمه خلاص کړه
هر چه حب د عاشق لري په زړه کښي
دا هلال دی چه لیده شي په شفق کښي
نا آشنا به بهره څه رنګ/څشکل ځني مومي
څربوې مي قربان لره پوهیږم
چه په نوم باندي باله شي لیده نه شي
چه د خط په دود ئي خلق په کښي پریوزي

زه رحمان له یاره خوښ یم که جفا کا
خوار عاشق د معشوقې د کوڅې سپی دی
ترو هاله به ورته وایم چه سړی دی
دا په ملك د عاشق کښي لوئ ورانی دی
دا زما خزان خزان نه دی پسرلی دی
ګڼه هر یو دوزخي په ژوند ژوندی دی
کوم یو در د یار له دره بریالی دی
که څوك ما ګڼي زه نه یم واړه دی دی
د لیلی د زلفو هسي غړوندی دی
زما خوښ دا خپل د خاورو کنډولی دی
خپله خونه هر ګدای لره ډهلی دی
څوك ئي پیژني ساهو دی که مریی دی
ترو چا زده چه د کوم نیکه نمسی دی
روڼا ورځ په نا اشناؤ توروږمی دی
په معنی کښي یو دیوال سوری سوری دی
عشق په مثل/عاشقي د سلیمان بادشاه غمی دی
که په قطع صد ساله وي هم زلمی دی
که په لاس د ګل اندامې سپین وښی دی
چه مدام ئي په آشنا پسې غورزی دی
دا چه کړی دي په ما باندي زړه سوی دی
معلومیږي چه نر حور یا ښاپیری دی
زنخدان ئي تر سبزې لاندي کوهی دی
که جفا نه کا وفا کا څو تیری دی

لکه ما چه مصلې در پسي لنگ کړې … چه مطلب مي غوا وغېلې يا گلې/غلې دي
بوي هم ستا د وفا نه دی را الوتي … کله کړې په مجنون باندي ليلې دي
نصيحت اثر په زړه د عاشق نه کا … کوم ملنگ هسي لنگ کړې مصلې دي
که رحمان د عاشق په تيغ شهيد شي … ما پخپله خپلې کړې تسلې دي
گڼه يادې زما ډيرې مسئلې دي

لړ مي وپوښته له حاله چه ولې دي … د جنت حورې همه واړه دلې دي
۴۴ … د هغو په سر همه خاورې ايرې دي
چا چه کړې و دُنيا وته اسرې دي … د همه واړو په سر
و دانا ته واړه/وته دا وشتې مسخرې دي
نادانان که د دنيا په کار نازېږي … نارينه ئي واړه خره او ښځې خرې دي
چه بې خدايه محبت کا هغه خلق
و سپين ږيري وته مه وايه سپين ږيريه … همگي واړه طفلان د گهوارې دي
هسي وايه چه څړ دي د زنانو … که ئي ايښي په دستار کښي قرقرې دي
چه نه فيض نه بهره ځني مونده شي
ذخيره ددنيا مه کوه رحمانه … همگي واړه بې فيضه بې بهرې دي
دا همه واړه د خاورو ذخيرې دي

په هر ځاي چه ستا ثنا شي ښيوه گرې … د رحمان شعر به ولي نادر نه وي
د هغو سترگو به اوښکي وي گلرنگې … خر مهره شي هلته در و مرغلرې
هغه کله د ناصح خبرې اوري … هر چه ستا په گل رخسار وي منتظرې
مرور کاندي عاشق له جمله خلقو … هر چه اوري ستا خوږې خوږې خبرې
په ساعت کښي سړی مړ کا هم ژوندی کا … معشوقې له هيچا مه شه مرورې
طايفې دي د خوبانو سحر گرې
زه ځان ډوب گڼم بې تا په خپلو وينو … که مي ډوب کا څوك په شهد و په شکرې
لرې لرې غم دي واړه را نژدې کړ … چه له مخه دي حجاب کړ راته لرې
چه مي نوم د ستا د زلفو په خوله واخيست … را پسې شوې د بلا تورې لښکرې
هميشه زما د زړه په وړو منکرې
هيڅ په حق د حقدارانو نه گروهيږې … ولي دا رنگه ځرگنده گواهي نغرې
زما ستا مينه ځرگنده په جهان ده … د رقيب کره هم ډول وي هم سندرې
زه چه ستا له غمه ژاړم آه فرياد کړم … د هغو له فهمه وڅکي شي گرگرې
چي ميوه يې د کابل خوږلې نه وي … په بد رنگه ناوې څه وايې سندرې
د ړندو سترگو حاجت د رانجه نه وي … زمري تل گرځي په لوړې په ژورې
که په غره په سمه گرځم باک مي نشته … چه ثنا کاندي د تا غوندي نادرې

چه شپه ورځ مي غږوي لكه تور□

هيځ مي نه درومي بې ياره ترمر□    تا چه دواړه سترګې تورې كړې نر□

د هغو په سر چه كښېني ښاپير□    چه بندي شوم د هجران په كچر□

خداى د تركو مستې سترګې كړې زمر□    تا چه واغوستې د خيال جامې نر□

هر چه كاندي د خوبانو چاكر□    چه ئي ملا وې د ويښته په دود نر□

كه په عشق كي څوك دغه طاقت لر□

۴۷

كه له تا ئي شرم نه كيداى مهر□

چ□ آفتاب دي تر رخسار پورې خجل شه    مخ به پټ نه ؤه د حورې د پر□

ستا تر حسنه پورې حسن واړه هيڅ دى    له دې ويرې زيست په شپه كا قمر□

بې د ستا د تورو سترګو جادوګرو    نيست په څه له هستو كا برابر□

ستا د عشق د تورې هسې رنګ ګذار دى    كوم آهو د بيابان زده وي دم ګر□

دلبري او دل جويي لكه د ستا زده    چه له مخه ئي حباب شي/وي ككر□

حسن واړه د عاشق په عشق موقوف    چا زده هسي دلجوي□ او دلبر□

دى    معشوقه كه فرشته وي كه چوړ□/چور□

و عاشق ته د يار غم واړه ښادي ده    د رضا په ملك كښي نشته دلګير□

دا دستور دى چه له درده زګيروى    ګڼه څه وو د رحمان له شاعر□

خيژي/خېږي

۴۸

ستا د تورو سترګو په یاداشت مي اوښکي اوري   حق دي که پریوزي په شبرات د غم کښي/عمر ستوري
زلفي دي سایه کړي مخ دي اور په جهان بل کړه   هر چا ته چه ګورم نیم په نمر/نوَر وي نیم په سیوري
څوك دي په وصال کښي قند نبات څوك ځګر خون خوري  چا وکړو دیدن د چا شو سپین د سترګو توري
اور ستا د رخسار دی ما په خپلو اوښکو بل کړو   تل په آتش سوزي آئینه چي نمر ته ګوري
سترګي مي د ستا له خیاله پریوتې و زړه ته   څه شو که مي بې سترګو صورت ځي په بل لوري
کله رقیبانو ته نظر کړې کله ما ته   ستا باران د مهر په ښو بدو یو شان/یکسان ووري
ځان په مستو سترګو باندي مه غۇلوه رحمانه   دا مستان هوښیار دي  له حکمته سره ښوري
۴۹
غم خواري دا هسي چري وي غم خوري   چه به ما دلته کښي ناست لرې ته دورې
هغه خدای  چه ئي ستا مخ  بله  لنبه  کړ   دا لنبه ئي کړه زما  په  ګوګل پورې
هم هغه دی زما تور لیمه سره کړي   چه ئي ستا لاسونه سره کړه سترګي تورې
غل خو غلا د سرو مال په توره شپه کا   ته په ورځ زما  د سر ود مال چورې
اصیل نه دی چا پیرودی نه یې پلورلی   ته اصیل  په دیدن پیرې هم ئي پلورې
دا کوم رنګ د آشنائي او د یار/ورور دی   چه زه ستا د مخ ثنا کړم ته مي زورې
درخانۍ په سل غمونو خدای  اخته کړه   زه به ولي له تا زار کوم که ګورې
زه و تا وته د  ستا له جوره ژاړم   ته را واخلې سل ګیلې نادرې نورې
د رحمان په عاشقۍ به آفرین کړې   که لږ مخ په آئینه کړې ځان وګورې
۵۰
ته په هره ګړۍ غم د سیم و زر خورې   زه دي هره ګړۍ وینم چه خپل سر خورې
عاقبت به دي یو خنډ تر/له سینې ووزي   ته چه تل په هر هر/یو  ښاخ باندي ثمر خورې
معلومېږي چي خپل غم درسره نشته   ځکه غم د برادر او د پسر خورې
په  عوض  ئي  کوم  طاعت  کړې  راته وایه   دا نعمت چه په هر شام و هر سحر خورې
روژتي په څلورم پهر/څلور پار پس افطار کا   ته څلور ځله طعام په هر پهر خورې
که یو ځله تر کماله ورسیږ ې   نور بهغوښې د خپل ځان لکه قمر خورې
که ښیښه د نام و ننګ دي شي تر څنګه   د هر چا په کجروۍ به خپل ځګر خورې
بې هنروله  قند هم زهر قاتل دي   قند ئي وګڼه که زهر په هنر خورې
نهال په زړه د صبر نخل کړه رحمانه   چه مدام د بر خوردارو په څیر بر خورې
۵۱
له چشمانو مي له غمه اوښکي اوري   چي اغیار ته یار ځما له قصده ګوري

سر و مال به د قاصد تر راتلو جار کړم چي خبر راله راوړي د یار له لوري

تر سرکي پیزوان یې جار شه قلندره لکه مست هاتي مدام په ځنځیر ښوري

ته چي راغلې خوبان واړه پسې شا شول لمر چي وخیژي نور ځي پټېږي ستوري

شینکی خال دي د جبین په مخ کي زیب کا لکه حوره د طوبی ونې تر سیوري

په رحمان د بېغم ساعت حرام شو لکه بېد مجنون بې شماله ښوري

ړي

۵۲

ما رنځور په کټ کښي پرېږدې چه کړېږم

لاس تر غاره د رقیب سره خندا کړې

هر بیگاه وایې چي خوله به سبا درکړم

که به مهر وفا هم چیري پیدا کړې

مي باید چه کله هغه کله دا کړې

چیري نه چه دروغژن مي تر هر چا کړې

دا پټ راز به مي په درست جهان رسوا کړې

تر ابدي ورځې پوري به جفا کړې چه په لاس د رقیبانو مي سزا کړې

معشوقې کله وفا کله جفا کا نه په دا چه ته په خپله ځان رضا کړې

ما ستا خوي دی وهر چا وته ستایلی دا پټ راز به مي په درست جهان رسوا کړې

چه د ستا دغه خصلت دی زما اوښکې

ستا څه لاس را باندي نه رسي دلبره هغه چارې چه ته هر ساعت په ما کړې

مرم په دا چه د اغیار په رضا درومې ته لا گرزې د رقیب سره خندا کړې

چه دغه اوښکي زما دغه خوي ستا وي چه ما ووینې له قصده راته شا کړې

په درست عمر به هیچا لیدلې نه وي دا بیگاه به په رحمان کله سبا کړې

۴۹ په پیر کښي چه هوس د (میو)می و بیهوده گمان په صبح د مهتاب کړې

ناب کړې د عتاب په ځاي امید ته د ثواب کړې

بې طاعته عنایت له خدایه غواړې لکه بت هسي په غټو سترگو خواب کړې

دانسته گناه کوې توبې وکارې بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړې

پ هغو غوږو چه ذکر د خدای اورې هم هغه شونډې بیا ډوبې په شراب کړې

په هغو شونډو چه حمد و ثنا وایې لکه طفل هسي لوبي په کتاب کړې

علم وکړې هیڅ عمل ور باندي نه کړې او په/د ورځې مخ په لوري د محراب کړې

په شپه پروت یې د مغان په میخانه کښي بیا د خدای په طالبانو ځان حساب کړې

تمام عمر د دنیا په طلب گرزې له رحمانه گوښه ونیسې حجاب کري

له خالقه دي نه شرم نه حجاب شي/وي

خدای و تاته /و تا د ملائکو مقام درکړ پــه حيله حيله به غر د مچ وزر کړې
په نعمت يې شکرانه کولای نه شې خپل ټټو او د بل آس به برابر کړې
چي خدای ستا په رضا کار کا ستا هم بويه چه له حقه و باطل وته گذر/نظر کړې
نه هغه چي دی به ستا په رضا کار کا ته دا خپل صورت پخپله گاو و خر کړې
که دي يو ويښته د ځان د پاسه کوږ شي چي زحمت درباندي راشي شور و شر کړې
که ښندلي دي په خدای وي يو کيکوړی/ککوړی چي دا خپله رضا واړه و خدای ورکړې
لکه څوك تر مکې لاړ شي ببرته/(يا)بيا ترې راشي ته خپل ځان دده په کار کي مقصر کړې
که يوه رتۍ دي زر/د زر دي په لاس کښي نمايان ئي په جهان کښي لکه نمر کړې
کښيوزي ځان هغه ساعت له خدايه مرور کړې
د ځوانۍ عمر دي تير کړو په غفلت کښي د دنيا دپاره هسي لوي سفر کړې
په دنيا پسي دي نمري دي رنگ کړې خرڅ خروار د عبادت په رتۍ زر کړې
لکه وار چه د زړې لولۍ تير شي په پيرۍ کښي به څه زيرمه د محشر کړې
په پيرۍ کښي د ځواني چاري نه شي ځان و خلقو ته درويش و قلندر کړې
لکه بيخ د زړې ونې چنجي وخوري اوس توبې له ضرورته په سپين سر کړې
دغه باغ به دي خلاص نه شي له خزانه ته په ورځ د عاشورې به څه اختر کړې
و بد خواه وته څوك نيک نصيحت نه کا په دا تير عمر به څه ښاخ و ثمر کړې
خدای له خپله عيبه ولي نا خبر کړې که چاپير ور ځني سد د سکندر کړې
هغه يو جو دانه عيب به ئي لوي غر کړې رحمان ستا په غم شريك دی که باور کړې

۵۵

د آشنا له لاسه ناست يم په زړه ستړی درست وگړی په فلوس مې په کار ندی
چه په ژوند ئې طمع پرې کړای شي له ژونده پرې کړی نور په څه باندي ويربرې سر
که ژوندون د عاشقانو په وصال وي زه محجور يم په دغه روايت مړی
خوږ ژوندون مي جدايئ هسې تريخ کړه رانغړی چه له غم له تخئ دم نه شم
دا صورت په مثال خس محبت اور شه پړی چه په پوزه ئې پېزوان شه د عشق
لاعلاج به لکه اوښ باربرداري کړه ترو د اور په مخ کي څه کاندي خسنۍ
له احواله ئې ورو ورو پوښتئ يارانو بېلتانه د رحمان وار دی خطا کړی

۵۶

څو به هسي آزادي په دا جهان کړې چي خبرې به د سر و د سامان کړې
همېشه به دا بهار درباندي نه وي کړې چي به سيل په بوستان په گلستان
واړه ډًر دي بدلوې يې په مشکنيو کړې هر تلاش چي د دنيا په سود وزيان

غمخواري د آل عیال دي احمقي ده
چي د بل په زېرمه ګرځې خپل نقصان/تاوان کړې

په نفاق کي به ضایع شې مرد هاله یې
که پخوا تر دښمن جمع خپل کاروان/خپلوان کړې

چي په دوو بېړیو پښې ږدي هغه ډوب شي
بېهوده دلبستګي په این و آن کړې

۵۷ ۵۸

خدایه مه کړه نا امید هغه وګړی

ستا له رحمه به زه ولي نومیدي کړم
چه امید ئي وي د ستا په کرم کړی

خواست زما قبول کړې ای مالک الملکه
چه دي ځان دي د رحیم په نام نومړی

خلاص یې مه کړه بندیوان ښه دی چي مرینه
ستا د اسم اعظم روی مې دی دروړی

چي په غاړه یې وي ستا دمیني پړی

همېشه به رنځړی او ربمن ګرځي
چي یې نهال وي په سینه د میني زړی

دا نیمګړی سړی ننګ هم د خپل نام کا
ته خو خدای یې چه په هیڅ نه یې نیم ګړی

هیڅ بنده دي په بندګي/بزرګي کښي لیده نه شي
چي/څو تا خط د آزاد نه دی ورکړی

دا همه واړه شومیت دی د شومانو
ګڼه ته د چا په زیرمه نه یې ستړی

چه بې تا ئي په زړه بله سودا ګرزي
تر مقصوده به و نه رسي وګړی

هر چه ستا په لار قدم د راست کیږدي
که ئي زیان وي زه رحمان ئي پوروړی

خدایه زړه د رقیب نرم په احسان کړې
ماله یاره یار له ماسره یکسان کړې

هغه درد چه د آشنا د بیلتانه دی
دفع رفع ئی د وصل په درمان کړې

ته چي ما منع کوې د یار له لوري
کشکي باد د سحر منع په بوستان کړې

غم د هجر چه تیری، تر اوره سخت دی
له دی غمه مي په امن په امان کړې

کاروبار د عاشقئ چه ډیر مشکل دی
دا مشکل زما په ما باندی اسان کړې

حجاب لرې کړه زما دیار تر میانه
بی حجابه مخ د یار راته عیان کړې

که مطلب د نورچا نورې مرتبې دي
ما ګدای په آستانه د خپل جانان کړې

که دا نور عالم و بلې خواته ګوري
ما په لوري ددلبرو نګران کړې

نه به ما منع کړې ته، له خپله یاره
نه به کوز په ځمکه ستوري د آسمان کړې

زه چه یار لره ورځم په هغې لارې
مهتر خضر مهتر الیاس می رهبران کړې

تاریکي د معصیت راخخه واخلې
د طاعت په روشنائ مي زړه روښان کړې

۵۹

چه زما په پریشانئ ئې زړه ښه کیږي
زړه ئې ما غوندې په یار پسې پریشان کړې

چه زما په چمن راشي ګستاخي کړي
د شبنم په څیر ئي عمر یو زمان کړې

چه آزاده د منکر تر سره پریوزي        د فلک په څیر مي توره د زبان کړي
هغه غشی چه د ترکو د غمزو دی        هر کلام می دهغه غشي پیکان کړي
چه کشور د افغانانو معطر کا/شي        د هر بیت مسر□/مصرع مي زلفې د
خوبان کړي
چه هرحرف ئې دنافو هسي خوشبو شي/وي برکت مي په جزدان په قلمدان کړي
الهي د خپل حبیب له برکته        دا ساده انشآ رنګینه د رحمن کړي

۶۰        ته لا بیا په ما ګمان د نام و ننګ کړي
ما په تا پسې دا سپیني جامې رنګ کړي        که هر څو مي مصلې در پسي لنګ کړي
هیڅ اثر دي په سنګین خاطر و نه شه        چه له ما غوندي مخلصه سره جنګ کړي
دل سوزي به دي په نور وګړي څه        که یو بل هم هسي ما غوندي ملنګ کړي
شي/څو وي        ګڼه تل/ما به د بلبل په څیر پتنګ/آلهنګ
ته په عشق کښي ما هاله دروغژن بوله        کړي
دا ناري سورې په عشق کښي دي غمازي        ته و ما وته دا سپینه لار ګړنګ کړي
عاشقي و معشوقي ته سپینه لار ده        دا جهان لکه لحد را باندي تنګ کړي
چه یو دم مي له نظره پناه کیږي/ته یو        خدای زما له کمه بخته په زړه سنګ
خوا شي        کړي
په ښه خوي سره د خلقو افسانه وې/یې        چه خبرې د رحمان سره په خنګ/جنګ
دا دي څوك له خنګه ناست دی نه پوهیږم کړي

۶۱        نور لذت به لکه زهر هسي تُو کړي
که د عشق شکرې تیرې تر ګلو کړي        د فاختې په څیر به کوکي په کوکو کړي
که دي وشي ملاقات له سرو قدو        ترو/نور د صبرد سکون/سکوت په ملك به
عاشقي به تیره توره در په لاس کا        هو کړي
په انصاف و عدالت به نوشیروان شي        هر عمل به/چه د خپل ځان په ترازو
د سکندر په څیر جهان به در څرګند/دي        کړي
روزي شي        که سرکوز په آئینه د خپل زانو کړي
تریخ لوګی به دي د قند په څیر نغړده        که صورت د عشق په اور کښي
وبه نه وینې د ترکو برندې/مستې        تمباکو/تماکو کړي
سترګې        مګر ځان په خپلو وینو کښي سالو کړي
که یو ځلې تورې زلفې په شانه کړي        خاکستر به په چمن کي کشمالو کړي
درست جهان به قاف تر قافه معطر شي        که یو ځله شانه ګډه په ګېسو کړي
ستا د زلفو مار خوړلی به روغ نه شي        که افسون د مسیحا وربانديي پوه کړي
لاس و پښې دي بې زیوره ښایسته دي        څه منت به د پایلو د باهو کړي
که سوزن د ښو راوړې تار د زلفو        د رحمان د زړګي زخم به رفو کړي

۶۲
تا چه مخ د پر□ سترګي د آهو کړي        نه پوهیږم چه آهو یې که جادو کړي
دعاګو چه د چا ومري څه ښادي ده        ته په څه زما و مرګ وته آرزو کړي
په محراب د عاشقانو کاڼي ووري        ته چه چین د جبین غوټه په ابرو کړي

تا چه رنګ د ګلو واخیست زه پوهیږم زرغونه به په څهره/چهره زما
ګنګو/کنګو کړې
ستا له ډیره څوره/جوره معلومیږي چه به ما پخپلو وینو/اوښکو
کښې لاهو کړې
روغ به نه شې بې دیار له ښه دیدن نه که سل پنډه سپیلني و ځان ته
لو کړې
د غفلت لیچن لیمه به دي بینا شي که د یار د کوڅې خاوري دي/ته
څښکو کړې
دا (دوا که بد دوا)دارو بد دوائي کوې طبیبه چه د یار په درد و غم کښې مي دارو
کړې
نصیحت په عاشقانو اثر نه کا دا محنت واړه بې ځایه بې قابو کړې
په رحمان باندي بې یاره خواب حرام دی که ئي سل پالنګه/بالښته لاندي تر
پهلو کړې

۶۳

که نظر په ماتو ګوډو د روزګار کړې همره نه دي چي حساب یا به ئي شمار
کړې
په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وي د بد خواه خاطر به ښه ددوست/ښاد دوست به
آزار کړې
صبر ونیسه په مخ کښې که مراد غواړې په تلوار به هیڅ و نه کړې که تلوار کړې
رضا پاسله و قضا ته فراغت شه او که نور څه نور څه وایې ځان به خوار
کړې
آزادي او کاروبار دي سره لري لاس له کاروباره وکاږه که کار کړې
چه پخپله ئي فاني بولې رحمانه ترو بیا څه په هغو چارو اعتبار کړې

۶۴

ولې ولې و عاشق ته نظر نه کړې دا ګدای په دیدن ولې توانګر نه کړې
ستا دي ډیري حیا ډیر کورونه وران کړ ل چه هیچا وته کاته برابر نه کړې
ستا په ډیر حسن مي دا عقیده نه شي چه دا روغ وګړي واړه اوتر نه کړې
ته پلو له مخه واخله زه ضامن یم که اورنګ د زمانې قلندر نه کړې
زما هر زمان هر دم په تا ګذر دی/وي ته یو دم زما په لوري ګذر نه کړې
لکه ته چه دلاور زما په مرګ یې چیري دا رنګه رقیب دلاور نه کړې
زه د ستا په جفا خوښ یم تل تر تله که غماز مي له دې رازه خبر نه کړې
ګذشته جفا دي واړه/جوروجفا دي آواره
وي که دا جور و جفا بار دیګر نه کړې
هغه څوک دي چه به ستا له دره دروميي که ئي ته له خپله دره بدر نه کړې
سنګدلي ده هغه خلقو لره ختمه چه ئي ته په مجلس ورشې اثر نه کړې
رحمان ستا میني رسوا کړ بارې حیف دی چه ته هیڅ په دا خبره باور نه کړې

څښتن لاس د سپي په سر باندي راکاږي ته تش سیوری د مخلصو په سر نه
کړې
زما هر زمان په تا باندي ګذر وي ته یو دم زما په لوري ګذر نه کړې

۶۵

و خوبانو وته ولي نظر نه کړې — د چمن په گلو ولي گذر نه کړې
دا بهار چه درست جهان ئي معطر کړ — دماغ ولي په دا بوي معطر نه کړې
رضا ولي په قضا سپارلی نه شي؟ — دغه زهر په ځان ولي شکر نه کړې
جك زده چه په نارو د مرگ خبرېږ ې — ځان پخوا تر مرگه ولي خبر نه کړې
چه دي نور خلق په سر اچوې خاوري — ته پخپله خاوري ولي په سر نه کړې
پس له مرگه چه بيا مرې له لوږې تندې — ولي نن ساعت توښه د محشر نه کړې
دا ويل دي اثر کله کا په نورو — اې رحمانه په ځان ولي اثر نه کړې

۶۶

چاچي نمري وي په خپلو وينو وللي — د شبنم په څېر به تل وي سپين سپېځلي
چي صياد څخه د اوښکو دانې نه وي — د هوا مرغان هيچا نه دي نيولي
هر يو مخ کله لايق د آبرويي وي اوښکي نه درومي په مخ د هر ناولي
هر شپه به شمع څه لره ژړا کا — که يې نه وي په ژړا کي څه موندلي
چي سېلاب د عاشق وربادي راغل — مخلوقات په مخه لاړل لکه خلي
ما رحمان به ژړا نه کړه له خوبانو — که مي نه وي په قسمت دا هسي ښکلي

۶۷

د لمرمخ چي/نمر سپوږم□ که ستا له    خم ابرو ئي په پناه د زلفو تم شو
حسنه/مخه نه شرمیږي    باریك خط ئي زلفو لاندي کړ رحمانه
دا سپوږم□ چه ئي نه سر شته نه ئي    دوي ولي زرغونه و زیړ ښکاریږي
پښې شته    ترو دا رنگه ولي زیړ زرغون ښکارېږي
زړه مي یووړ ستا د مخ په روڼا زلفو    په کوم حسن به له تا سره سمیږي
خم ابرو یې د پناه د زلفو تم شو    بارې غل په سپین سبا کله پټیږي
که قامت دي څوک شمشاد بولي غلط    د لړم لشه له مار سره تاوېږي
دی    د لرگېو په نرخ سپین زر نه یافتېږي
و (دندان و)سپین غاښو ته دي در ویلي نه کاڼي کله د برېښنا په دود ځلیږي
شم    همگي لړم ماران دي چه وریږي
ستا د زلفو د ابریو له وحشته    چه سبزه په اور کښي ځرنگ/څنگه
مخ دي اور خط دي سبزه ده زه حیران    زرغونیږي
یم    دا قدرت دی ستا په لبو کښي نمائیږ ي
اور اوبه سره چا گډ لیدلي نه دي    ستا له غمه مي رنگ زیړ پوست مي
لکه لوند زوړوکی تاو کړې َنو ئي    وچیږي
وځي/ووزي    چه په هره میاشت کښي دوه
سپوږم□ هم دا هسي تاو خوري ستا له    دوه(ځایه)نیمه کیږي
مخه    د لرگیو په نرخ سپین زر نه یافتیږي
ستا قامت که څوك شمشاد بولي غلط    د لړم لشه له مار سره تاویږي
دی    مورچگان د شپې له مخه پایمالیږي

۶۸

صبحدم چه هغه یاررا باندي راشي    بې ترتیبه چه نمر وخیژي روڼا شي
ښکلي مخ لره حاجت د سینگار نشته    لکه پیښ چه و بله کاه و کهربا شي
چه ئي ووینم له ورایه پوري ښلم    ناروا د ضرورت په ځاي روا شي
ما له ډیري ناچار□ و یار ته شا کړه    د هر کار فکر تر کاره لا پخوا شي
زه په وصل کښي خواري د هجران ژاړم گنه هلته هر یو ژاړي چه جدا شي
لا پخوا تر جدای□ نه ژړا بویه    مگر غاړه په دا کار د چا ادا شي
وصال نه دی چا په سرومال موندلی    دا په عشق کښي سهل کار دی که په دا
زه به سرومال د یار تر نامې ځار کړم    شي
د رحمان په اوښکو هسي رنگ پوهیږم    چه آخر به په تمام جهان رسوا شي
عجب نمر د نمر د پاسه هویدا شي

هغه زړه به له طوفانه په امان وي
خدای دي بد له لاسه نه کا او که وي هم
اغزي مه کره په پښو کښي به دي خار
شي
چه هم دا غشی به ستا په لور گذار شي
چيري ستا به د کوهي په غاړه لار شي
لا ړومبی/وړنبی به ستا صورت تر خاورو خوار
شي
هر چه بل آزاروي هغه آزار شي
هر سړی به ستا د عيبو پرده دار شي
سرکوزي کوه چه بڼ دي مرغزار شي
د هر چا عمل ځرگند په خپل گفتار شي
ناگهانه به دا صبح شب تار شي
چه لږ لږ وبله جمع کړې بسيار شي
هر يو نخل چه ميوه لري سنگسار شي
هر چينجی و نرم چوب و ته/ته ور دوچار
شي
چه کشت غوندي د خلقو باربردار شي
د رحمان دې له کل بدو استغفار شي

٧٠

هر وګړی چه منصور غوندي په دار شيدار ئي پس له مرګه نخل ميوه دار
روغ صورت که روغ عالم لره کمال دی شي
هر ګياه چه و کمال ته ورسيږ ي    ليوني لره کمال دی چه سنګسار شي
نری باد به ئي په خپل منزل داخل کا    سر و/ئي زمکي وته کوز وي نګونسار
غفلت هيڅ مناسب نه دی په/د سپين    شي
ږيريو    که څوك پاڼه د خزان غوندي طيار شي
چه يو موټی ايرې ناز په آئينه کا    صحبدم که څناور/حيوانات دي هم بيدار
کريمانو سود موندلی دی په زيان کښي    شي
خزانه په سخاوت سره زياتيږي    هم په دا خبره فخر د خاکسار شي
مړول د ورې ګيډې مشکل نه دی    لکه ښاخ د ونې وتراشې باردار شي
کم خوراك سړی نژدې کا/نزدې شي    د کوهي اوبه چه وکاږې بسيار شي
فرښتو ته    مړول د وريو سترګو مشکل کار شي
صافدلانو لره اږ نصيحت بس دی    هر سړی چه بسيار خور شي بسيار خوار
غلبه د عشق بهانه د حسن غواړي    شي
د توفيق له مخه هر مشکل آسان دی    د ګوهرو پيوستون په نري تار شي
ناز د حسن/عشق پرورش مومي له    توره شپه په عاشق زلفې د خپل يار شي
عشقه    و ست وته د اورلمبې/لنبې ګلزار شي
بې محنته چا راحت موندلی نه دی    هسي نه چه د خوبانو په سنګار شي
عاشقانو لره واړه سعادت دی    د وصال خوښي د هجر په مقدار شي
ياره! ياره! هر څوك وايئ په جهان    که ئي سر و مال د يار تر نامې ځار شي
کښي    زه به پس له مرګه وايم چه يار يار شي
لکه ډار دا کاندي (مر)ورغومی له ګرګانو    هسي رنګ له جداي نه زما ډار شي
د رحمان دا پوچ ګويي څه پکار نه ده    عاشقي په ګفتار نه شي په کردار شي

ناکشته ور ځني طمع د خروار شي — خو چي دوه قدمه اخلي نور حصار شي
چه سبا بيگاه به ما لره گوهار شي — هغه نه کا چي له نهي پرهيزگار شي
په دا هسي پوچ گوئي ئې اعتبار شي — چي دا گنج به مي له لاسه تار په تار شي
د هغو ناشدنيو اميدوار شي — هدايت د هر بنده په کردگار شي
چه شهيد د تورو سترگو په خنجر شي — خوشنودي ئي د سرو شونډ و په کوثر شي
چه را ياد ئي سپين رخسار دراز مژگان کړم — هغه دم مي زړه سپند سينه مجمر شي
عندليب خاطر مي الوزي په گلو — که د ترکو سنبل زلفي ئي شهپر شي
که يار سل ځله جفا را سره کاندي — زما کله په جفا د يار باور شي
د ناصح په نصيحت به منع نه شم — که هزار ځله مي ورور و برادر شي
د رقيب او زما صلح سره نشته — که مو چيري لاس و دست و بله بر شي
صبوري او قراري له ما خطا دي — تر هغه ساعته پوري چه محشر شي
تير ساعت به د هيچا په لاس کښې نه وځي — مگر تللي آشنا بيا په آشنا ور شي
خوبرويان به د سپوږمۍ ټوکړه را وخلي — که رحمان کچکول په لاس کښي قلندر شي

۷۳

چه غبار دا ستا د لاري په خوا ورشي — که په دواړو سترگو ړوند وي مبصر شي
تازه نوی سر پيدا کړي لکه شمعه — چه ئي غوڅ د ستا په مينه د زړه سر شي
چه کيميا د قناعت ئي په لاس کښيوزي — که گدای وي د قارون په څير توانگر شي
ستا د در گدايان واړه بادشاهان دي — خو چه ستا له دره ووزي در په در شي
تل ئي مخ وي له عالمه جار وتلی — د هغو چه ستا په مخ باندي نظر شي
که د درست جهان له حاله خبر دار وي — چه تا ووينې له واړوبې/نا خبر شي
ائينه که د جمال کړې ور څرگنده — دا گدای رحمان به شاه سکندر شي

۷۴

که دي غم د درست جهان تر زړه چا پير شي — دلگير مه شه هسي وايه چه به تير شي
غم هغه دی هر چه څيرمه وي و چا ته — وړنبي/وړومبی واړه تر وروستيه پوري هير شي
بې له خدايه چه مدام په يوه حال وي — بنده/سړی کله شيرشاهي شي کله سبر شي
يو آدم دی چه په څو رنگه جلوه کا — يو رقم دی کله زورشي/و کله زير شي
د دنيا چارې مدام په قرار نه وي — د ښو په ځنبول کي به/په بل بل پېر شي
په لړ عمر کښي ډير غم له کومه راغی — خوله خپلي بې صبر په سړي ډير شي
خريدار و فروشنده چه سره خوش شي — په سودا کښي سختي نه کا تير و بير شي
ښايسته په جهان ډير دي بې حسابه — باري څوك به د رحمان د يار په څير شي

۷۵

ترو بيا خدای خبر چه کوم خوا ته به لاړ شې
چه به خس غوندي تر پښو لاندي لتاړ شې
په ودانه ودان کښي به په ويجاړ شې
۷۶

عندليب غوندي به پاتي په اهاړ شې
چېري نه وي چه د ترکو په (وولی لاړ)ويلاړ شې
چه مجنون غوندي ساکن د کوه و کاړ شې
عاشقان چه پښيمانيږي هغه نه کا
دا خو زه له شفقته/مشقته تا ته وايم
د هوا په نغوته مه ځه که دانا يې
وران به نه کاندي يو حرف د خپلې برخې
په تدبير به د تقدير کښلي نور نه کړې
په رحمان باندي بې ياره صبر گران دی
۷۷

نه ئي نوم په خوله ځوك اخلي نه نومړ شي
و اجل ته لکه خر په خټه پړ شي
ياره څو به دي دا ناز په جهان وړ شي
عاقبت به د لحد په خاورو خړ شي
که د سروې په څير ځوك په قامت لوړ شي
که د سرو زرو/زرو مېرو سر/سړی وي خو چه مړ شي
دغه چاره نه په سوك نه په لوړ شي
هغه سوك د بې هنر وي چه خپړ شي
گڼه ځان له سرنوشته په چار/چا زغړ/ژغړ شي
که هيچا پړکړی نه وي په جهان کښي
د هوا ويشتلي غشي زر په ځوَړ شي
راشه راشه دا ډير ناز و کبر مه کړه
که په اوښکو د چا درست جهان چقړ شي
دا رخسار چه دي روښان تر آئينې دی
د قسمت علاج په عقل کله کړ شي
مراد خو واړه دلبر دي/دلبري ده غزا وشوه
لکه زهر چه ديده دانسته نغړ شي!
نيك‌نامي له نيك خوي نه پيدا کيږي

څوك خبر دی له دې دوره
چه په حال كښي ئي حال نه وي
يو ساعت ور باندي كال شي
فراموش ئي قيل و قال شي
په غوږ كوڼ په ژبه لال شي
نه ئي غوږ د چا په سوال شي
درست صورت ئي خواب و خيال شي
لكه نقش د ديوال شي
هم دغه ئي اشتغال شي
په رخسار ئي پشكال شي
تير تر آل و تر عيال شي
هم تر مال و تر منال شي
تر عالمه فارغ بال شي
بې طاقت و بې مجال شي

د مرده ؤ په مثال شي
هسي بې تيغه حلال شي
په زړه غوڅ په تن كهال شي
له كل خلقو په دنبال شي
تر قدم لاندي پايمال شي
بيا لا بويه/ګوره چه خوشحال شي
نورژوندون ئي په اشكال شي/نوې ويني په محال شي
چه تازه نخل و نهال شي
پرورش ئي ډير/لوی جنجال شي
وداني/آبادي په ډير اشكال شي
چه ئي زوی با كمال شي
چه په ما به پيښ څه حال شي
څه اميد په استقبال شي

خدای قادر دي که وصال شي
له سيالانو سره سيال شي

ګوندي مخ دي په حلال شي
په ساعت کښي اتصال شي

په يوه ساعت ابدال شي
که ځوك سل ځله سنبال شي

په سپين مخ باندي تور خال شي
رمل پاتي د رمال شي

خداوند د ملك و مال شي
خپل افعال د سړي فال شي

٧٨

هر چه ستا په زنخدان کښي ئي منزل شي
لکه خس په تناره کښي به جلبل شي

چه ځوك نوم د ستا د شونډو په خوله واخلي
که ئي زهر وي په خوله کښي هم عسل شي

په هجران کښي زه/زه په هجر کي بې برګ و بې نوا يم
لکه کښت چه اوبه نه مومي شډل شي

په عاشق باندي ګمان دا هسي مه کړه
چه يار زړه ور څخه يوسي تش ګوګل شي

په جهان تر آشنايۍ خواره څه نشته
ولي حيف دي چه هجران په کښي حنظل شي

په خپل حسن باندي مه نازېږه ګله
دغه رنګ به دي په دوو ورځو بدل شي

زه رحمان بې ياره هسي شول و شل شم
لکه کب چه بې محيطه شول و شل شي

۷۹

که سل ځله هم کنار و هم بغل شي د دنیا مئین به/د دنیا په مینه واړه سره

دا چه اوس په یوه کور کښي سره ناست بیل شي

دي عاقبت به ئي جدا جدا منزل شي

دا ګلونه چه ئي ځاي دی په دستار کښي همه واړه به تر پښو لاندي غوبل شي

دا پی مخي چه ئي مخ د نمر په څیر دي تور ویښته به ئي په مخ باندي ځنګل شي

دا شیرین شیرین شربت چه د وصال دي شي

ما د یار په بیلتانه کښي دي/دی د هجران په وقت به زهر هلاهل شي

لیدلي/لیدلی که دانا د زماني وي مبدل شي

پښه له ویرې د وصال په ځمکه/مزکه چه خبر د جدایۍ په دل دل شي

نږدي چه نه فهم د چا رسي نه اټکل شي

د دې هسي رنج علاج به څوك په څه کا هر چه زړه ئي د خوبانو یرغمل/په یرغل

که د غرونو په سر ګرځي سر ئي ټیټ وي شي

د رحمان خاطر غمونو هسي زنګ کړ مګر جام د میو ناب وي چه صیقل شی

۸۰

که د زړه په وینو رنګ د چا ګوګل شي چه بیلتون په جهان ګرځي/شته دی خو به

که د اوښکو په دریاب باندي ئې نهال بیل شي

کړې نیشکر به نیشکر شي نه/نل به نل شي

مشقت د سړي واړه حبطه/ابته کا/دی په شوره کښي چه د ګل بوټی نهل شي

د دنیا یاري دوستي څه پکار نه ده له اوله یار و دوست وي پسې غل شي

که هر څو ئي و بله مهر و محبت وي نهایت سره په جنګ و په جدل شي

په مثال د دروغژنې مرغلرې آب وتاب ئي په دوه ورځې کي بدل شي

که ئي زنه دځوانۍ په وقت کښي سیب هغه سیب ئي په پیرۍ کښي بیا حنظل

وي شي

د رقیب له بده خویه به څه وایم ترو دا ګوره چه لا یار ور سره مل شي

زه رحمان په ښه په/و بد د یار پوهیږم کاشکي زهر په دهن د چا عسل شي

۷۶

هغه زړه چه خدای روښان کا جام د جم په داجام کي ور ښکاره تمام عالم شي

شي بیا هاله ئي آدم بوله چه آدم شي

په آدم کښي د حیوان خویونه هم شته سړي هوښ په سړي هله مسلم شي

چه خویونه د چارپایایو په کښي نه وي د ناپاکو چاري کاندي خو به ګرم شي

چه اغوستی ئي لباس وي د پاکانو چه یوه ذره نمك ئي زیات و کم شي

که هر څو طعام لذیذ وي مزه نه کا د هغو به څه ښادي وي چه بې غم شي

ښادي هر چیري د غم په اندازه وي که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ

هر چه خپله رضا پاسلي و قضا ته خُرَم شي

عاشقي چه تر کماله ورسیږي د خپل یار له لاسه زخم ئي مرهم شي

که په ځان باندي قدم کیږدې رحمانه نُه فلکه به دي لاندي تر قدم شي

۷۷

چه مجنون غوندي يو موټی استخوان شي	په قوت د عاشق به پهلوان شي
عاشقانو په شکست کښي بري بيا موند	دلته توان د هغه رسي چه ناتوان شي
زيړی رنګ د عاشقانو هسي مرتبه ده	چه آفتاب غوندي څرګند په درست جهان شي
له چشمانو ئي باران د رحمت ووري	زرغونه ئي په چهره باندي زعفران شي
له رخساره حال د زړونو معلوميږي	له بهاره نيك و بد د كال عيان شي
له نكتې نه تمام علم حاصليږي	درست خروار له يوه مشته نمايان شي
پكار نه دي مخالف هزار تقريره	موافق له حاله نيم كلام داستان شي
لكه مړ له كار و باره وي وتلي	د هغو خاورې په سر چه غافلان شي
كه دي ډير عمر پكار دی غفلت مه كړه	په اوده باندي سل كاله يو زمان شي
د غفلت بنياد د اوښكو په موج خيژي	يو څڅويكی خواب آلود لره طوفان شي
ړوند په خپله عصا پريوزي و كوهي ته	خپل دليل د كم دليل د ځان تاوان شي
سر كشي د عاجزانو پكار نه ده	هر ميږی چه وزر وكاندي پښيمان شي
موم دلان به ئي له شره لمن ژغوري	سنګدلان كه عين لعل د بدخشان شي
چه كيميا د قناعت ئې په لاس كښيوزي	د شړ په خرقه كښي بادشاهان شي
بل پوشاك ئي پكار نه وي بې نمده	هغه زړه چه آئينه غوندي روښان شي
عاشقي ده تر جمله بلاؤ زياته	و مجنون ته ديو و دد واړه حيران شي
پرې به وركا دُر بتان/كاتبان به وركا دُر د خپلو غورو	كه ئي تير تر غوږو شعر د رحمان شي

۸۳

آشنائي توره بلا ده آشنا مه شې	جدايي به دي فنا كا فنا مه شې
درد و/دغه غم به دي د زړه ولې كا غوځې	ګرفتار په درد و غم د جانان/جانا مه شي
په زيړ رنګ به دي تل سرې اوښكي بهيږي	د دو رنګو په څير ګل د رعنا مه شې
هم په دا چه دروغژن د خدای دښمن دی	و هيچا ته دروغژن په وينا مه شې
نور همه واړه ادنی دي ادنی مه شې	كه اعلی مرتبه غواړې عاشقي ده
توانايې د تن تاوان دی توانا مه شې	خپل څربښت و هر ځاروي وته قصاب دی
د رحمان په څېر/هسې مشغول په ثنا مه شې	هميشه به سر نګون په فكر ناست يې

۸۴

یار له یار سره جفا کا هسي ډېره
که هر څو ئي دلبري و دلجوئي کا

بې طبیبه قراري د بیمار نه شي
په تعلیم د معلم به هو ښیار نه شي
د قضا علاج په مور و په پلار نه شي

هیڅ نقصان ئي د منکر په انکار نه شي
هیڅ سړی دي په دا رنځ ګرفتار نه شي
چه دي یار له خپله یاره/د یار له لاسه ویزار/ازار نه شي
چي هېڅ فرق یې د اغیار او د یار نه شي
د رحمان په  ترکو هیڅ اعتبار نه شي

٨٥

د سکوت په تیغ چه ژبه بریده شي
هومره اور د عاشقیه په زړه یوسي
خم ابرو د یار مي نقش په لیمه دي
همیشه ئي د خپل یار په لوري دَو وي
څه حاجت دی چه زه یار و چا ته ستایم
کله وي چه یو د بل په ویل ګُولیږي
خود څرګند وي لکه صبح په جهان کښي
ابروئي د عاشق هلته ځان څرګند کا
د آه غشي(ی) ئي په زمکه کله لګي
بې مطلوبه ئي هیڅ فهم په چا نه وي
هر چه زړه په مهرویانو باندي بایلي
ما د یار په خیر بل مخ نه دی لیدلی
یا به شهد یا به قند یا به نبات وي
لا قلم غوندي په قال کښي دویده شي
چه لاله ئي له تربته دمیده شي

لکه میاشت چه په لوي بحر کښي لیده شي
نهایت چه په دا دَو کښي رسیده شي
کار همه د خپلو سترګو په دیده شي
مګر صافه د چا خپله عقیده شي
هر ګریوان چه په یار کښي دریده شي
چه ئي نم د زړه له سترګو چکیده شي
هر قامت چه کمان طوره خمیده شي
هر طالب چه په طلب کښي فهمیده شي
بې دیناره و بې درمه خریده شي
مګر پس چه له نن ورځ آفریده شي
هر کلام چه له رحمانه شنیده شي

٨٦

چه سړی له بله بد وایئ بد ګوئ شي
مرده شوئ چه هوس کا د بل و مرګ ته
دوست د ښمن د سړي واړه خپل عمل دی
هره ونه چه کېږه په یوه لور وي
په لوی کښي نور څه نشته بې زواله
د اوبو اصل له خاورو پیدا کیږي
همره زیان له خوګه خرسه نه رسیږي
سړي هوښ چه د سړي له تنه پاځي
و هغو وته چه خدای پخپله وښود

لا تر بل پخوا روان د ده بد بوی شي
بل هم پس دده له مرګه مرده شوی شي
هم په دا مقدار ئي اجر موي بموی شي
عاقبت ئي پریواته په هغه سوی شي
هلکان د هلکتوب په سبب لوی/پوی شي
خاکساري د خاکسارانو(په) آبروی شي
لکه څوک په آدمیانو کښي بد خوی شي
د سړیو په جامه کښي خربشوی شي
څه حاجت ئي د رحمان په ګفتګوی شي

٨٧

سود سودا د عاشق که نفع مند وای ځانکندن د بلبانو په ځان راغی
تمام عمر که وصال ؤ همره نه ؤ! هغه یار د دلبرانو په شان راغی
آشنائي مي په هوس وه خو چه بیل شوم ما هیڅ سود په کښي بیا نه موند/ونه لید نقصان راغی
ګوی زما د زړه ئي یووړ په چوګان کښي لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغی
غنچه لب به/چي په خندا کاندي/نه کا پریشانه دواړه لاس مي و بله ومښو ارمان راغی
د میرزا د ارزاني دعوی به پرې کا بیا د ناز په نیلي سور په جولان راغی
پر شیبو زما د اوښکو باران راغی
قدر دان د شاعرانو رحمان راغی

۸۸

په اول کي تا د عشق وهلې لافي خلافې هغه لافي دي اوس ولي کړې
اوس خپل سر ورته محکم نیولی اوسه کړې خلافې چي د غم مصی دي ځان ته
سپین چلتار په یوه ټکي بد نمای شي د ارزالو چاري مه کړه که اشرافې
بې تمیز خو معرفت کولای نشي صرافې ته کره او کوټ معلوم کړه که
ځان دي ولي بې حیا کړ بې حجابه چي پټ کړی دي د میني په غلافې
که دا هسي لویي غواړې لویی داده که په اصل کي منصور غوندي ندافي
ددوران له فسادونو امان غواړه که په عقل د خپل فکر موشګافې
د تقصیر سبب یې کوم دی رامعلوم کړه انصافې مئین وژنې بې له جرمه نا
کوم صفت به زه رحمان د ستا بیان کړم اوصافې په کامل صفت موصوف په کل

۸۹

یا دا ستا چشم و ابرو وینم په خواب کي شوي په محراب کي یا مستان دي اوده/وېده
یا په جام کي ستا د مخ عکس لیده شي حباب کي یا خو تندر تجلی که/کا په
یا تر خط لاندي غوټ ستا دخولې/خولو دي په شهاب کي یا کوکب دی را ډوب/غرق شوی
یا دي زلفي په مخ دواړه را خورې کړې کنجلکي/کجک شو د اور په تاب کي یا سنبل دی
یا دي زلفو په مخ توره تاریکي کړه آفتاب کي یا خو تندر ځان خرګند کړ په
یا دا ستا مژګان/پیزوان زما په خاطر/ځګر خښ دی یا سیخونه دي پټ شوي/پیيلي په کباب کي
یا خو ستا له/په غمه/غم کي غرق زما صورت دی یا خسنی دی جاروزي په ګرداب کي
ته ددې رحمان خطا کړه ور معافه کي د اوترو چاره نه وي په حساب کي

چي د يار کاته يې ووزي بيا د سترګو حساب/حباب کي
چي د يار دمخ کاته له ميانه ووزي
د رحمان به څه عزت وي په

۹۰

ستا د ميني ګوهر نشته په هر آب کښي
رنګ د لبو دي ګواهي لي/دی په دا باب کښي

که ته وينې زما پټې ښښې دلبره
د لاله و باران اوري په حباب کښي

په هر ځاي چه ستا د لبو نوم آغاز شي
د خراج ګنجايش نشته په خراب کښي

له خسته زړونو به څه دلستاني کا
کافر څه ښکل سجده کا په محراب کښي

زه حيران د ستا د وروځو په تور خال يم
نازک زړونه/نازکان زړه بدوي په صاف څواب کښي

ګل له ډيري باريک په شبنم خور شي!
د څڅويکي طاقت نشته په حباب کښي

د بهار په ګلو اوري بارانونه
د اوترو چاري نه وي په حساب کښي

د رحمان غلطي وبخښه اې خدايه
مګر بيا موند شي د اوښکو په درياب کښي

۹۱

زړه مي بايلو ستا په مينه محبت کښي
عاشقي دي زهر راکړه په شربت کښي

لاړ زما و يار ته مه تړه ناصحه
ما موندلی دی دا يار په ډير محنت کښي

که صورت د هغې مستې در/را څرګند شي
عقل وهوش به دي هيڅ نه وي په صورت کښي

که د عشق تر کمر پريوزې/لګې سر/غاښ به بايلې
ته چه ما ته غاښ چيچې په نصيحت کښي

زه توبه په هغه تير عمر وکاږم
چه صرف شوی دی بې ياره په غفلت کښي

د آشنا د ميني پټ به مې/را مات نه شي
که مي سر له تنه درومي په دا پټ کښي

له ادبه ئي و مخ ته کتی نه شم
خدای را پيښه جدائي کړه په وصلت کښي

په قيامت که څوك له نيته پوښتيده شي
زه د يار د کوڅې خاوري يم په نيت کښي

د درګاه په خاك نشينو يې تل سخ وي/سختي نه وي
دغمونو دخل نشته په جنت کښي

لکه زه چه ستا/يې د در په خاورو خوښ يم
خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کښي

د درګاه په خاک نشينو به يې تل سخ وي
د غمونو دخل نه وي په جنت کي

د دنيا له دولتونو بې پروا يم
زه رحمان د عاشقيه په دولت کښي

دا سور گل به دي دستار په وينو سور کا
مخ د ترکو چه تر آب حيات صاف دی
چه اوسپنيزه/د اوسپنو آيينه پرې اوبه کيږي
په هر وار چه ئي زه سترګو ته نظر کړم
ياره ته چه له ما صبر و قرار غواړې
که مي سر و مال د ستا په مينه درومي
هېڅ صرفه مه کړه د زړونو آزار اخله
عشق د عقل په کوڅه استوګه نه کا
ستا له دره له درباره/دياره به وا نه وړم
کمبختان د يار په وصل کښ مهجور وي/دي
مفلسانو لره عين کوهستان دی
و هغو چې خدای حقبينې سترګې ورکړې/کي
و عيب جن/جوي ته واړه عيب ځرګنديږي
چه هنردعاشق ئي خدای نصيب کړو
دا داغونه د خپل زړه ور لره بس دي
هر خسنړي تېره تېغ وي/دی په دا لار کښي

چه دي ايښی زمانې دی په دستار کښي
زه دي آب حيات سوی يم په نار کښي
ترو زما دهستڼ څه دي/هستي يې څه ده په ديدار کښي
لاس مي وللي دي له ځانه په هر وار کښي
عاشق کله وي په صبر و په قرار کښي
زه تر سر و ماله تير يم په دا کار کښي
که د چا سود روزي شوی په آزار کښي
چا موندلی نه دی يار په دا ديار کښي
څو و نه مرم ستا په در و په ديار/دربار کښي
د وچ ډکي بهره نه وي په بهار کښي
که همه عمر ئي کور وي په بازار کښي
د يوسف تجلیويني په ديوال کښي
ښايسته که ځان يوسف کا په سنګار کښي
بې هنره نور څه نه ويني په يار کښي
څه حاجت دی د رحمان په لاله زا ر کښي

۹۳

مدام ناست يم وچ ګوګل سترګي په نم کښي
ما چه زخم ستا د توري په خوله ښکل/کښل کړو
خوار/خود مجنون چه سر په پښو د ليلی کيښود
زورآور مدام غالب وي په کم زوري
لکه زه چه مستغرق يم ستا په غم کښ
لکه مړی د ژونديو تر ميان پروت وي
هيڅ صحت مي د دم ګرو په دم نه شي
نه مي بې تا تګ و پو(ی) نه جست و جو شته
که نصيب مي شي کوغالی ستا د سپيو
زړه مي هسي ستا په زلفوپسې ورك شه
سره په وينو د سرو ګلو په څير زانګي
زه رحمان کناره خوښ يم له عالمه

عشق را وښود بحر و بر په خپل حرم کښي
نور مي دا لذت بيا نه موند په مرهم کښي
سر فراز شه په عرب و په عجم کښي
زه له نوره غمه خلاص يم ستا په غم کښي
بل به نه وي په جمله بني آدم کښي
هسي بيل يم له عالمه په عالم کښي
هم په دا چه زما دم دی ستا په دم کښي
مراد مي ته يې په هر دم په هر قدم کښي
وبه نه کړم نور نظر په جام د جم کښي
لکه غوټه د چا پريوزي په تور تم کښي
هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کښي
بارې ستا سترګو رسوا کړم په عالم کښي

هسي بې له یاره زه/بې یاره خفه یم په جهان کښي
چه قدم بې یاره کیږدم په بوستان کښي
سره ګلونه د چمن راته سور اور شي
حیرانیږم د ناتوان صورت په توان کښي
چه ئي مړ نه یم له ډیري بې نیازیه
هیڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان کښي
که هر څو فکر له ځانه سره وکړم
څوك ساتلی شي بڅري په ګریوان کښي
هیڅ ساتنه د سر کښ خاطر را نه شي
چه څوك مهر وفا غواړي په نادان کښي
تر هغه به بل نادان په جهان نه وي
که ئي سل ځله په ځار و قربان بولم
غور رانه باسي په ځار و په قربان کښي
هسي رنګ زما په ډیره ژړا خاندي
لکه ګل د پسرلي خاندي په باران کښي
جوهري شي در و لعل کاندي برسېره/څیره
چه مي کښېني د دوو سترګو په دکان کښي
چه مي هیچري په خوا په خاطر نه ووا!
چه په وصل کښي ئي اوښکي نه وچیري
زماني راته څرګند کړه په زمان کښي
چه مي نه شي ځاي په مځکه په آسمان کښي
ترو به حال د رحمان څه وي په هجران کښي

۹۵
د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښي
شیریني به خوند در نه کا په دهان کښي
څو دي تیر تلخائي تر ستوني نه شي
له یوسفه ملاقي شوم په زندان کښي
ما په هجر کښي لذت د وصال بیا موند
لکه متن له معنی معنی له متنه
یار هم هسي دی زما په دل و جان کښي
عاشقي آسانه مه ګڼه خبر شه
سر بازي ده هر نفس په دا میدان کښي
د ناتوان له ناتوانیه وویریږه
که هزار ځله توانا یې په خپل ځان کښي
هم هغه به پس له مرګه آزاریږي
هر چه بل آزاروي په دا جهان کښي
په رحمان باندي بې یاره هسي حال دی
لکه حال زندانیانو په زندان کښي
بیا د ګلو تماشا کړه په بوستان کښي
۹۶

بې تا به څوك څه كاندي د خلقو په جنبو كښني
خداى ابراهيم غوندي نګاه كا په لمبو/لنبو كښني
كله كړي آرام د اور بڅري په پنبو/لمبو كښني

٩٧

هسي خوښ يم ستا د در په خاكستار كښني
لكه خوښ وي سرداران په سردار كښني
عاشقي كه نورو خلقو ته خواري ده
ما موندلى دى دولت په دا خوار كښني
و بيمار ته كه ناخوښ وايئ وګړي
خوښ يم زه د ستا د عشق په بيمار كښني
د خپل بام و دروازې/روزينو وته نظر كړه
هسي سترګي دي زما په بيدار كښني
يار د يار له سترګو اوښكي پاكيزه كا
تا جاري كړې زما اوښكي په يار كښني
ما له ډيري ناچار و يار ته شا كړه
سړى عذر دى په ډيره ناچار كښني
غم به هيڅ يوه هوښيار خوښ كړى نه واى
ما خوښ كړى دى ستا غم په هوښيار كښني
د رحمان اوښكي به څه رنګ په قرار وي
چا ليدلى دى درياب په قرار كښني

٩٨

ښايسته مخ وي/سپين مخونه تور كودى شي په پير كښني
هم بې تاب و هم زيړى شي په پير كښني
لكه شمع د سحر آفتاب د ژمي
خپل صورت تمام پردى شي په پير كښني
يو طرف ته ئي سر ريږدي بل خوا درومي
كه څرګند ليده ژوندى شي په پير كښني
د مرده ؤ په حساب وي غزا وشوه
نشته دا چه څوك زلمى شي په پير كښني
مړ لا ښه دى پس له مرګه بيا ژوندى شي
كه څه وخوري لكه زهر نه هضميږي
نه څه ښښى نه څه خوړى شي په پير كښني
دا ځواني ده چه څه اوري يا څه وينې
نه ليده نه اوريدى شي په پير كښني
اې رحمانه پيري هسي عاجزي ده
كه رستم وي زړه پرې سوى شي په پير كښني

٩٩

سم قامت وي كوږ لرګى شي په پير كښني
چه وصال د خپل جانان مي دى موندلى
ګنج د درو د مرجان مي دى موندلى
همره طمع مي له خپله بخته نه وه
نه پوهيږم چه څه شان مي دى موندلى
كه په ډير مشقت لاس لره خداى راوست
زه خو وايم چه آسان مي دى موندلى
چه مي يو نفس وصال ور سره وشه
واړه اجر د هجران مي دى موندلى
څه عجب دى كه تمام جهان زما شي
چه بادشاه د درست جهان مي دى
زه رحمان په خپل اشعار شكر ګذار يم
چه دا هسي رنګ ديوان مي دى موندلى

١٠٠

ماچي سترګې و ګلرخ ته واړولې
په هغو سترګو مې ويني وژړلې
د عمل جزا يې بيا مونده برحقه
دا دستور دى چې كرې هغه اخلې

تر غمزویې یو په سله زړه قاتل دی تل چېرې تورې په کاڼې تېرولې
خودکرده به څه تاوان له چانه غواړي خپلې چي یې غوڅې په خپل تېغ کړې سپینې
مادا مرگ داستا په مینه کي هاله لید چي گدای دبادشاه لافې وهلې
له خوبانو به څوک څرنگ وفا غواړي سروې کله کشمشي مېوې نیولې
په دربار یې سنډاسي شه ورته کېنه تار په تار د سر وېښته ایرې مښلی
که دفتر د خپل قسمت دچا په لاس وای بدې برخې به چا کله قبلولې
چې نیکې یې ورکوله و نېکانو دې بدانو څه بدې نه وه غوښتلې
څوک له خاورو ایرو پاڅوې تخت ورکړې څوک له تخته د ایرو په ډېران ولې
ستا چې نیت د آشنایئ نه ؤ صنمه د رحمان سترگې دي ولې نه گنډلې
د ازل په ورځ د برخو جواري وه اې رحمانه چا بایلودې چا گټلې

١

یوځل ولېدای د یار پرېشانې زلفې په عارض باندې حلقه پېچانې زلفې
که تورتم لرې ظاهر سیاهي د زلفو حقیقت لرې سفېدې روښانې زلفې
دا قدرت الهي دی راشه گوره ددانا د گردن طوق نادانې زلفې
هم په څېر یې د خپل ځان په زړه حیران کړم په اوږو د یار پرتې حېرانې زلفې
په شمیم د خوشبویې زه خوشبو شوم زلفې خدای دي نه کا په خپل داد پښېمانې زلفې
په کوم لورې به زه سر ترېنه وکاږم و گردن ته مې پرتې رېسمانې زلفې
ځکه ژاړم له دوو سترگو اوښکې وینې چي رحمان ویني د یار خندانې زلفې

٢

زړه د نفس په پیرو در څخه لاړ شه
چه یوسف د حبشي په بها مومې
بد په/له بدوپښیمانې کاندي رحمانه
نه پوهیږې په خپل سود و په زیان ولي؟
منکرېږې په عطا د سبحان ولي؟
په ډېر توان کښي خپسر/خپلسر بولې ناتوان ولي؟
بد لوې په دنیا دین و ایمان ولي؟ دُر گوهر په بها پلورې ارزان ولي؟
همیشه په ځای د شکر شکایت کړې کور و کر شوې د محشر په سامان ولي؟
در بخښلی خدای د هرې چارې توان دی ته د رزق په طلب مرې جهان ولي؟
مدام اوښکې تویوې د رزق له غمه بیهوده په لوټو ولې آسمان ولي؟
چه په هر بیگاه سامان د هر سبا کړې آسان کار دي کړو په ځان باندي گران ولي؟
هیڅ گیاه له ځایه نه خوځي نم مومي په کعبه کښي ننباسې بتان ولي؟
چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړې د خبیث په لاس دي ورکړ قران ولي؟
په ژوند ومره چه د مرگ له غمه خلاص شې د مطلوب په بها نه ښندې ځان ولي؟
غیرې میني دي په زړه باندي انبار کړې

ته په خپلو بدو نه شوې پښيمان ولي؟

٣

په نور څه پسي بې خدايه ژاړې ولي؟ چه په ورځ د شيخ لافي کړې رحمانه
چي روټ ميده کوې په شخوند خو جوړ يې د چارپای په څير بې ځايه ناړې ولي؟
ته دا خپل کلام ميده په دا خپل شخوند کړه ترو خبرې کوې لواړي لواړې ولي؟
هغه کار چه دي په نرم ويل کيږي تا داړلو ته تيرې کړې داړې ولي؟
نيك له نيکو بد له بدو مناسب دي بيهوده په بيرته نولې لاړې ولي؟
يو قدم د خدای په لور ايښودی نه شې نيك و بد وبله/سره په بله نغاړې ولي؟
تل دي طوق د تعلق په غاړه کښيوست تمامي عمر په بيرته/پراته لاړې ولي؟
وکښای نه شې دغه طوق له غاړې ولي؟
په شپه مى له مى فروشه غواړې ولي؟

۴

ته چه خپله بې عقلي هوښياري بولې کاشکي بيا مومې د غوښتو په نرخ شولې
عشق يو داد دی په عاشق باندي له خدايه هسي نه دی چه ئي پيرې يا ئي پلورې
که د مصر مستورې شي واړه ټولې
زليخا غوندي به بله شيدا نه وي چه اوبه ئي خاك آلودي وي خټولې
هغه بحر څه په بحر حساب نه دی چه په غم وي د کاله يا د کهولې
له هغو سره به څه فکر د يار وي څو په يار پسي وانه خلې ځلي زولې
عاشقي څه د نغري په غاړه نه شي جدايي ئي خلقې کړې/کړلې په زړه ځمولې
د وصال په نعمتونو غره مه شه د رحمان شعر ګوهر دی څه ئي تولې
دُر ګوهر په تله نه دي چا تللي

۵

هسي ډوب يم ستا د غم په درياب تللی چه ماهي غوندي بې تيغه يم کوټلی
ما ليدلې چه لينده دي وه را کښلې تا د ورځو په ليندو يم زه وېشتلی/را کښلی
په خپل ځان مي تر هغه پورې نظر ؤه څو مي ته په نظر نه وې کښيوتلی
اوس مي ستا په مينه ځان و جهان هير شه د سيلاب په مخ کښي لاړم لکه خلی
عاشقي به ئي د باد په مخ بڼه کا که چا/ئي ځان وي کوه قاف غوندي نيولی
چه د عشق له بحره روغ سلامت ووزی زه ئي نن ګڼم له موره زيږيدلی
هر چه واوړي په بلا د تورو زلفو هغه بيا تر کوره نه دی ورغلی
چه له غرونو پريوتلی وي بيا پاڅي پاڅيدای نه شي له/د زړونو پريوتلی
چه د اور لمبو/لنبو وهلی وي بيا روغ شي نه رغيږي د آزار/هجران لنبو وهلی
زه رحمان ئي هر دم وينم ستا په غم کښي که خپل مرګ په سترګو نه دی چا ليدلی

هغه ځوك دى چه تر تا به بهترين وي | تا چه هسي جامي واغوستې رنګينې!
چه دي زلفې د رحمان په زړه وريځ کړې | هسي سکښې په غمزه د عاشق سپينې
واړي وينې واړه وينې واړه وينې | زړه مي ستا له غمه چاود دى نازنينې
لا خنجر په کاڼي مړې دل سنګينې | اي تر واړو مهرويانو بهترينې
لا يقين دي د زړه نه شي بې يقينې | تر بڼو ئي ځکه څاڅي اوښکې وينې
زه په څه سبب وژلى يم ستا مينې

٨

خداى دي وژغوره له هرې پريشان | اي زما د کور و کلي ودان
عاشقي چه ما ګڼله دانائ وه! | اوس خبر شوم له دې خپلې نادان
تر ورځ تيرې اوبه بيرته نه جار ووزي | څه پکار دى پوچ بې ځايه پښيمان
ودانې په يوه دم کښي شي ويرانه | مرد هغه چه کړي د ورانې ودان
لکه باد چه ځان وهي له کوهه دشته | زه په تا پسي کوم سرګردان
دا خو زه د ستا د غم سره لوڅيږم | څوك له ديوه سره کړي پهلوان
چه په آب و په آتش په خاك و باد وي | څه اميد دى په هغه/هغې زندګان
ته چه دا رنګي اوږدې اوږدې وعدې کړې | کشکي راکړې و ما خط د امان
زه او ته که هغه وقت واى چا به نه واى | د مجنون او د ليلى قصه خوان
زما ستا و نندارو ته به حېران وو | که ژوندي واى آدم خان او درخان
و هر چا وته چه وايم حېرانيږي | څه به وايم د رحمان له حېران

که يې هر زمان په آب زمزم وينځم | بې مئينه مي په زړه باندي غبار وي
څو يې سل خاره خښ نه شي په ټټر کي وي | کله وي چي د بلبل و ګل ته لار

٩

و آسمان ته به ئي سترګې وي ختلې          د هغو عمر به واړه په عذاب وي
لکه څوك چه کړَوي ئي په کړَهۍ کښي          دهقانان به ئي همه خانه خراب وي
لا به کله بارانونه پرې نزول شي          د باران له انتظاره به بې خواب وي
هميشه له خدايه خواست د اوبو کاندي          د هغه ماهي په طور به کباب وي
لکه تل چه ئي په زوړ د اوبو غوړ وي          چه نخيل او زراعت به ئي سيراب وي
که همه عمر با ران ور باندي ووري          که ئي چيري خواست په عمر مستجاب وي
د ګرمۍ او د خشکۍ له دهشته
د اوبو له ډيرې ډيرې قيمتۍ نه          همره غوړ ئي نه په چنګ نه په رباب وي
فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نه کړې          لا ګرمي ئي په صورت کښي د آفتاب وي
د اوبو په غلا چه ور شي نه جار ووزي          د آفتاب په څير ګمان ئي په ماهتاب وي
د اوبو په ويش چه ورشي انصاف نه کا          لرګي لوښي ئي مردار په منجلاب وي
د اوبو ثواب ئي نه کيږي له لاسه          که اوبه ئي ګډې وډې په پيشاب وي
د باران اميد ئي نه کيږي له خدايه          که ساکن د خانقاه او د محراب وي
پليتي به ئي له تنه څه رنګ درومي          که په لاس ئي ورقونه د کتاب وي
چي د نوکو وچولو په ځای ورشي          که په ګوټ اوبو ئي عين د حج ثواب وي
هيڅ ئي مه پوښته له غسله له اودسه          که ئي شپه و ورځ په سر باندي سحاب وي
په سبب د ډيره ډيره تيممه
د للمي سړي په مخ کي وي آب چيري          چه اوبه په کښي ناياب تر ګلاب وي
په آبۍ کښي لا هم وي خونه ويرانه          تر تنځري ځان بتر کا که عقاب وي
يو به نه سي هيڅ برى له سري/ى ورخه          چه يو ځاځکى پرې ګوهر غوندي ناياب
سم حساب له عزيزانو کله مومي          هميشه ئي سپيره ږيره په تراب وي
نه طاقت د بد ويل لري نه صبر          هغه خلق چه بې آب وي خو بې آب وي
نه ئي مرګ نه ئي قتنه له لاسه کيږي          هغه کلى چه د بل کلي پايئناب وي
چه ئي زيست يا ئي روزګار په تحمل شي          پايئناب سړى که زوى هم د ارباب وي
روزګار په کاروي تحمل کا          تل تر تله ئي د بل لاندي حساب وي
که يوه بده وينا ئي له خولې ووزي          لکه مار په ملا وهلى پيچ و تاب وي
هسي شان/يو هغه سړى تيرى ورباندي          لاس تړلى د خپل شرم به طناب وي
وکړي          هميشه ئي له بديه اجتناب وي
همسايه وي/ئي چريکار د/و پښتانه شي
ملايم ويل اثر ور باندي نه کړي          هغه دم ئي په خپل ځان باندي عتاب وي
لکه ديو وي د سړيو په صورت شي          چه په عمر نه د سوال نه د (جو)ځواب
په هيڅ رنګ له بده خويه نه جار ووزي          وي
چه اشراف د هسي خرسو/ښو په لاس          او په اصل به موچي يا به قصاب وي
کښيوزي          چه په زړه کښي ئي نه شرم نه حجاب
هسي رزق دي خداى هيچا لره ور (مه)نه          وي
کا          ته ګمان کړې چه سړى وي/دى دى
تر دا هسي زميندارو هغه ښه دى          دواب وي
نوکري د يوه سپي ور لره ښه ده          هسي مست د جاهليه په شراب وي
د خشکۍ له غمه قوم د رحمان خوښ دى

نو/ترو خلاصی به ئي له خونه په کوم باب وي	چه نوکر د يوه تور کافر کلاب وي
هغه پرېږده چه لا نوم ئي د نواب وي
که به رزق د چا په هسي رنگ اسباب وي که رفتن ئي له جهانه په شتاب وي

چه فتنه/فتنې په خواب وده/اودې شي ډېر ثواب وي
١٠
تل دي ستا د خواب آلودو سترگو خواب وي	نور د حسن په حجاب کښي بې حجاب وي
لکه مى چه په مينا کښي تجلي کا ته چه ما ته لولوې پټ د صبر	زه هم ډېر په دا راضي يم که مي تاب وي
زه په دا سبب په ترکو پسي ژاړم	چه ژړا د عاشقانو د مخ آب وي
که نادان وي هم دا همره خو پوهېږي	څوك چه نه ژاړي په يار پسی كذاب وي
د عاشق سترگې په دا سبب شوې پاکي	چه مدام د جوې په سر لکه حباب وي
له خالي خونې به څه وړي چه څه نه وي	که ختلی د حباب په سر سيلاب وي
هم په دا ئي د نغمې اثر پيدا شه	چه په تشه گېډ ه صبر د رباب وي
د حريص له خپله نقده بهره نشته	لکه مار د گنج د پاسه پيچ و تاب وي
کاملان تعلقات د دنيا نه کا	لکه پاڼې د خزان پښه په رکاب وي
غفلت هيڅ عجايب/مناسب نه دی په دنيا کښي	ساکنان د خرابات/دهر کل واړه خراب وي
چه ښادي غواړي بې شماره بې حسابه	په رحمان به د غمونو څه حساب وي
١١
د هغو چه وبله/(څ)ځبله مهر و محبت وي	په هستۍ او په نيستۍ کښي فراغت وي
چه د چا مقام په رنځ يا/و په راحت وي
عاشقي ده تر هغه مقام پههور ته څه د اور په لنبو/لمبو سوی څه د عشق/په واورو	واړه عشق دی که هجران وي که وصلت وي
ناست ولاړ ئي همه واړه عبادت وي
چه مطلب و مدعا د سړي خدای شي	چا چه کړی د مکې په لوري نيت وي
که په دوه قدمه ومري هم حاجي شي	دا ئي واړه په معنا کښي ولايت وي
هغه څوك چه پيروي د اوليا کا	وفهيم وته کم فهمه بې عزت وي
که د زرو په تخت کښېني غزا وشوه	هغه دم چه له جهانه په رحلت وي
خاوري زر په سړي واړه برابر شي	هوښياري تر حده پههورته حماقت وي
د دانا او د نادان تر ميان يو حد دی	د هر چا په خپله خونه کښي حرمت وي
تجاوز له خپله حده پکار نه دی	د رحمان سره دي غم د آخرت وي
نور عالم که د دنيا غمونه کاندي
١٢

د ښاد نښه هغه وي په جهان کښي
بودني هغه باله شي په معنا کښي
نقصاني وي/دي د دنيا عمارتونه
زندگي که څوك پوهيږي حضور دم دی
دا دنيا لکه سيلاب هسي بهيږي
چه کامله اراده لري په زړه کښي
و هغو ته چه خدای خود پخپله وښود
چي کامله اراده لري په زړه کي
ډير ياران ورڅخه بيل شو هيڅ ګرم نه دی
ترو خاطر به په کښي څرنګ/څنګه د چا ښاد وي
هر مرغه چه په قفس کښي د صياد وي
که سل رنګه نعمتونه ئي معتاد وي

هغه هر چرته/چېري آزاد دی/وي چه آزاد وي
د آشنا له لاسه داد وي که بيداد وي
چه په يار پسي بې بيخه و بې بنياد وي
چه د تن په نابود يی/دنيا ئي په نابوده اعتقاد وي
که ترې لاندې سل ستونه/ئي سل ستني د فولاد وي
آينده و رفته کله د چا ياد وي
نه ئې چا څخه/څنې استوګنه نه اِستاد وي
د مرشد له اشارته بې ارشاد وي
څه حاجت ئي په ښوونه د استاد وي
د مرشد له اشارته بې ارشاد وي
که رحمان له جدايۍ نه په فرياد وي

۱۳

په دنيا کښي که هر څو و بله پيوند وي
زه به وخورم په دا باب هزار قسمه
يا به وړاندي تر تا درومي يا د/به وروستو وي
زمانه به ئي تر پښو لاندي پايمال کا
هم ئي هسي پيمانه ګڼه په خاورو!
هر چه کاندي آزادي په دا جهان کښي
هر چه غاړه ئي و حق ته ايښې نه وي
دا چه زه و تا ته وايمه که خدای کا
ته چه نه کوې باور په آياتونو
ناپسند به د منکر په انکار نه شي
خدايه ګنج د قناعت و رحمان ورکړې
پس له مرګه به ئي درست صورت بند بند وي

که باور دي په قسم و په سوګند وي
که دي ورور که دي عزيز که دي فرزند وي
که په قطع تر اسمانه سربلند/آسمان پوري بلند وي
که دی/ئي ډکه خوله تمام عمر په قند وي
پس له مرګه به همه واړه په بند وي
هميشه به ئي په غاړه کښي کمند وي
په آيت وپه حديث کښي به څرګند وي
ترو زما ويل به څه در لره پند وي
هر کلام چه دلپذير و دل پسند وي
چه بې ملکه بې حشمته دولتمند وي

۱۴

یار به ځان تر یار وړنبي کا که په/ئي وار وي

۱۵

له هغو سره به څه فکر د یار وي | چه یاران ئي په هر لور هزار هزار وي
په آشنا پسې ویشتلي هم هغه وي | چه له نوري آشنائ ئي استغفار وي
صبوري او قراري دي په ما زوم/زوړ شي | که بې تا به مي یا صبر یا قرار وي
هر ژوندون د یار په وصل ښایسته وي | بې مئینه که ژوندون وي څه په کار وي
که د یار له لاسه اور په یار بلیږي | هغه اور و عاشقانو ته گلزار وي
په یار کښي آزار نشته خدای دي نه کا | که ذره به زما زړه له تا آزار وي
و هغو ته عاشق نه/مه ویلی بویه | چه ئي فکر یا د سر یا د دستار وي
ځاي ئي اور شي چه زنار ئي شي په غاړه | ولي نه چه ستا د زلفو زنار دار وي
ستا د زلفو زنار دار که په اور سوځي | دغه اور به هم رښتیا ستا د رخسار وي
هغه جونه به لیلی غوندي رسوا شي | چه رحمان غوندي مجنون ئي په دیار وي

۱۶

که د ستا د خاطر مینه په اغیار وي | ستا دپاره دي اغیار هم زما یار وي
هر سړی چه په یو مخ باندي مئین شي/وي | له یوه مخه ئي سل مخه پکار وي
هر چه کاندي نوکري د پادشاهانو | خواه مخواه به د دربانو منت بار وي
زه/څه به ستا له رقیبانو څه/زه ماڼه کړم | دا دستور دی چه له گله سره خار وي
څو سل خاره ئي خښ نه شي په ټټر کي | کله وي چه د بلبل و گل ته لار وي
سجاده به د ساقي د لارې فرش کا | هر صوفي چه د سرو سترگو خریدار وي
په جذبه د عاشق به لیونی شي | که په قطع افلاطون غوندي هو ښیار وي
په رحمان باندي به هیڅ ملامت نه کا | هر سړی چه ستا له حسنه/مخه خبر دار وي

چه لږ زه د هغه یار  تر فهمه ښه شوای
دغه هسې  یو زمان زما په خوله شوای
دغه پسه هر چه شولای بیا هاله شوای
نه پوهیږم چه د  یار  له غمه څه شوای
نور مي نوم په دا جهان کښي پاتې نه
شوای
۱۸
چه په مخ باندي د اوښکو یو  رقم وي
که په اصل څوک/کي عرب وي که عجم
وي
که ګریوان مي د سپوږم د نمر مشرق
شي
څه پکار بې سلیمانه که خاتم وي
دلته سر پورته  کول د  چا  رسیږي
بې سلېمانه په کار ندی که خاتم وي
کړو ورځو غوندي نېش وهلی نه  شي
تازګي د ګل په قدر د شبنم وي
معشوقه چه د  عاشق په غم  وي غوځه
همدمي د دوو همدمو هسي بویه
که د درست جهان  خوښي/ښاد ور
باندي راشي
بل ستم د بیلتانه د پاسه نشته
دا  قضا  څه  تر قاضي موقوفه نه ده
راحت هر چیري هغو لره لازم وي
چه خوناب ئي د چشمانو مِي ناب شي
هیڅ حاجت د هنر  نشته و نصیب/رقیب ته
هنر مه غواړه طالع له خدایه غواړه

د رحمان خندا په اجر د ژړا ده

۱۹

عین چه/د د تورو له پرهاره سره سم وي
زه چه یار په سترګو نه وینم تور تم وي
چه پخپله د یار  زلفي  خم  در  خم وي
که په زړه د پاسه پروت د چا لړم وي
د عاشق سترګې دي ووځي چه بې غم
وي
چه د دواړو زندګي/همدمي په یوه دم وي
 مه کړه خدای چه څوك بې یاره خوښ
خورم وي
که لیدلی چا په سل رنګه ستم وي
خود پخپله یار تر یاره پوري ګرم وي
چه په درد و په محنت/محبت کښي مقدم
وي
پیوسته له دغه جامه سره جم وي

همیشه دي زما سر و ستا قدم وي ترهغه ساعته پوري څو مي دم وي
ستا له لاسه واړه ما لره نافع دي مرهم وي که مي زهر ږدي/وي په زخم که
زه بې تا هسې ګمان کړم چه سفال دی جم وي که نسکور مي په لبانو جام د
نور عالم که ددنیا په ښادئ ښاد دی/وي غم وي زما زړه دي مدام ښاد دا ستا په
که په زړه باندي مي سل غمونه راشي وي دا ستا غم دي تر همه ؤ مقدم
ما دي ستا له غمه خدای بیغمه نه کا ترهغه ساعته پورې څومي دم وي
رحمن ستا په مخ مئین دی خدای خبر دی وي که په دا کښي به هیچیري زیات و کم

خپل قسمت په سړي کاندي هرچي کاندي د چا برخه خاموشي د چا نارې شوې

قاعده د درد مند هسي نه ده چي په درد کي یو دردمن تر بله کم وي
چه بیلتون ورته اسان دی هغه خلک ازمیښت لره په بند د بېلتانه شوای

که یې هر زمان په آب زمزم وینځم بي مئینه مي په زړه باندي غبار وي
څو یې سل خاره خښ نه شي په ټټر کي کله وي چي د بلبل و ګل ته لار وي
۲۰
ته چه ما ته وائي چه په چا باندي شیدا یې ستا د عشق تر توري ککر د رحمان ځار شه
زه به تا په کومه زیرَک شم پَړوّلی زه په تا شیدا یم وایه ته چه یار د چا یې
زه چه کبرجن وم عاشق مي ګردن مات کړه چا زده لکه تا زده همره وایه چه څه وایې
ته چه لکه وې هم هغه هسي کبریا یې
ځان که ستا په مینه کښي فاني کړم څه به وکړم ته چه په دا هسي رنګ له آهه بې پروا یې
څه دي حاصل هم شته که مطلق په مرګ رضا/زما یې
مرګ مي په تا ولي خدای اختر کړ(و) نه پوهیږم زیات له ما نه خوښ ته د قاضي هم د ملا یې
څه شو که یم زه انګشت نما په مینه ستا کښي دا هم سهل کار دی زما یاره که په دا یې
۲۱
هر چي په حیات صورت له مرګ سره اشنا شي خلاص به د قیامت له خرخښو په دی دنیا یي
سخ د هغو ګلو چي برګریز یې په بهار وي ګل سراښې وکا له خزانه استغنا یي
غم (خو) هم(هغه) که چي هیڅ غم ورسره نه وي ولي چي ناګاه به یوه ورځ وربandي زیایې/زیبایي

حکم د نېستي په هغو دی هر(چي) هست دي        هرچي هستي پريږدي له نيستي يی څه پروا يي
زړه د عاشقانو د دښمن له لاس بېغم دی        لکه شمع د مقراض له خصومته په خندا يي
لوره تنده نشته د قانع په قناعت کي        دا کېميا چي زده کا په خرقه کي امرا يي
هيچا سرچشمي/سره چشمي حاصلي نه کړې په خرمن کي  بلکه د قحطي په ملک که شاه يی که ګدا يي
ما به رښتيا نه وې/وايی ای يارانو باري څه کړم        حقه کلمه نغړده هر ګور سخته بلا يي
زورور سېلاب واړه ترل په مقامات وي        زړه  د خاموشي په ځای لره نه(چي) ګويا يي
بې خس و خاشاکه د آتش بقا په څه وي        آه و فرياد واړه په مقدار د تمنا يي
زه د رقيب چارو ناويسا کړم له حبيبه        زلفې په نسبت د مار خوړلو اژدها يي
ای رحمانه هر راحت په اجر د زحمت/رحمت دی    هر چي ډير(ډير)خاندي هسي ډير(ډير)په ژړايي

په پښتو کي رحمان ووې        په فارسي کي سنايي
۲۲
چه پخته شي آشنائي        تر ميان ووزي جدايي
و طالب وته وفا شي        د مطلوب بې وفايي
بادشاهي کاندي بدله        ددیدن په ګدايي
خاني پلوري په اوربشو        ميرزائي په ميزرايي
نظر نه کاندي هېچيري        په لوئي په بډايي
ورته کفر ځرګنديږي        خودبيني او خودرايي
خودرايي په عاشقي کښي        له عاشقه نه ښايي
معشوقې که بې وفا دي        عاشقان خوئې ستايي
غوړ ئې کوڼ سترګې ړندې وي د خپل يار په خطايي
که ئې کړي وي سل علمه        هم ديني هم دنيايي
همه واړه فراموش کا        چه پرې ورشي شيدايي
و مطلب ته نه رسيږي        په شيخي په/او ملايي
آواره ننګ و ناموس کا        په سر واخلي رسوايي
تر ناموسه ورته به شي        بې ننګي، بې نوايي
هره چار ئې په اخلاص شي        نه په روی و ريائي
قبلوي په دواړو سترګو        هرچه يار پرې فرمايي
نصيحت پرې اثر نه کا        که څوک سل ځله وايي
فايده نه لري په عشق کښي        د داناؤ دانائي

مشکل کار ده عاشق     آسان چیرې دی بایي
دغه کار کولی نه شي     هر کم فهم و کجایي
هر کم بخت ئې کله مومي     د دلبرو همتایي
څه په کسب مونده نه شي     دغه کار دی عطایي
چه د عشق په لومه کښېوزي     نور ئې نه وي رهایي
بې د یار له مخه نه شي     دعاشق دلکشایي
د خپل یار په طلب ګرزي غاړې غرونه پیمایي
له عالمه وي وتلی     لکه صید صحرایي
تل تر تله ئې وطن وي     ګوشه کنج و تنهایي
مدام سوی لوغړن وي     د خپل آه په ګرمایي
هر زمان ئې په اور نیسي د خپل یار تمنایي
نه ئې ملک و نه ئې مال وي     نه ئې زهد و پارسایي
په دا هسی ګرانو چارو!     معشوقه/معشوقې ئې ازمائې
په یوه دیدن یې/ترې یوسي     د درست عمر کمایي
هم مي هسی رنګه وژني یاره ستا بې وفایي
چه په زړه کړم زړه مي چوي     دغه ستا خود نمایي
هم خودي لري بې قیاسه     هم د حسن زیبایي
ضررنه لري بې نفع     ستا د میني سودایي
ستا سودا ما لره سود ده/دی     حق به وایم خدایي
په هیڅ مخ کښې لیده نه شي     ستا د حسن صفایي
نمر به څه له تا سیالي کا په دا بې سروپایي
ادراک نه رسي د سروې  ستا د قد په رعنایي
لکه ستا قد و بالا/چه قد بالا دی     نشته هسې بالایي
که د ستا وصال دریا وي  زه ماهی یم دریایي
د مګسو زندګي ده     په دکان د حلوایي
زه طوطي/توتا شکر پرست یم دا ستا شونډې میټایي
دا ګمان په رحمان مه کړه     چه بې تا به وپایي
۲۳
که په قطع د تمام جهان ملک یې     چي له ځانه خبر نه یې لا هلک یې
که په قطع د تمام جهان ملک یې     چي له ځانه خبر نه یې لا هلک یې
آدمیت خو څه په مال او په شال نه دی     ته چي خیال په شال په مال کړې ځکه سپک یې
منصفان دي د انصاف خبرې وایي     څه شو څه شو که په خپلو کي شریک یې
که د لمر په څېر څرګند شې په جهان کي     څو په زړونو پسندیده نه شي لا ورک یې
بزرګي په دلجویي کي ده د خلکو     ته چي خلک ړوبوې څرنګ به بزرګ یې

په لوي کي لويې چيري ده لايقه     کمين و ته مټ کړه که سالک يې
فلک تا غوندي پيدا کړي بيا فنا کړي يې     ته لا نوی خواست کوې په ناز نازک
دانايان به په دېوان ښکلي پند اخلي يې     چي رحمان په خوار نظر ګوري فلک

څوک له خاورو ايرو پاڅوې تخت ورکړې     څوک له تخته د ايرو په ډېران ول يې
۲۴
مست د هغه مخ يم چي مستانې لري سترګې     بې توري، بې تېغه، قاتلانې لري سترګې
بې ليدو کتو غايبان زړونه وړي له خلکو لري سترګې     هسي چشمان بندي ساحرانې
هرڅوک چي يې ويني توري ترګې/نورې سترګې     کتی نه شي ښکلي پريوارغوندي حيرانې لري سترګې
لب آب حيات دي او نفس (يې) د عيسی دی لري سترګې     هيڅ عجبي نه دي که خوبانې
هر چي عاشقان دي هغه کله بل خوا ګوري سترګې     واړه ستا په لوري نګرانې لري
ای رحمانه اوښکي هم له تخمه د باران دي ګريانې لري سترګې     کښت د هغه شين شو چي
۲۵
خو زما په ورميره ماتول شېر يې     که په مرګ د رقيب هم هسې شمشېر يې
مرګ خو وينې چه پخپله را پسې دی     څه محتاج زما و مرګ وته ډېر ډېر يې
کبر و خيال خو لا له ځايه ستا عادت دی/ؤه     او که نن زما له قصده په بل پير يې
دا بې شماره عاقلان به شي کم عقل يې     ته چه دا رنګې په زړه وښکه/وکښه دلير
ستا خويونه به پخپله ځان ځرګند کا     زه به څه وايم چه ته تر بلا تير يې
له حيرته دي تعريف کولی نشم     چه په څه رنګ دي ستايم د چا په څير يې
ما چه ستا د لبو خوند بيا موند/واخيست محظوظ شوم     که سل ځله په ترخه ويل ګنډهېر يې
د جهان ښکلي که واړه د رحمان شي     خدای دي نه کا چه ئي ته له دله هير يې
۲۶
په يوه زره به ورې يا به موړ ئې     په يوه ذره به ګرم يا به سوړ ئې
که ځواني له خدايه غواړې ځوان به ومرې ئې     او که بس له ځوان پائي خو به زوړ
بندګان خو کله/سړی کله خويا جوړ کله ناجوړ وي     څه خدای/خدای خو نه ئي چه به تل تر تله جوړ ئې
عاشقي به دي آسمان غوندي ځرګند کا صورت ووړ ئې     که مجنون غوندي هرڅو په

بدي واړه په ښه ونيسه رحمانه ئې
چي پای بند د يار په مهر يا به مروړ

عاشقي بې جذبې چيري ده رحمانه ووړ/مروړ ئې
ته مجذوب د يار په مهر کښي لا

عبادت خو په ځوان□ کيږي رحمانه يې
په پير□ کي به څه زهد کړې چي زوړ

٢٧

د زړه حال و تاته څه وايم په ژبه
ته خبر د خوږو زړونو په منزل يې

هم د ګل په څېر بلبل سېځې په مينه
هم مئين لکه بلبل هسي په ګل يې

بې ليدو د ر څرګنديږي عيب واړه
په کمال د جملګ□ چارو کامل يې

هم قاضي يې هم ملا هم محتسب يې
هم ساقي د مى پرستو په محفل يې

يو دي ذات په دواړو کونو کي شهره دی
بل په نام له هر چا لويه يو په سل يې

چي ته مخ په عبادت کي نه جار باسې خپل يې
درسته شپه دي (نفس) بدي کا ته يې

ورکول او پېرودل دي په خپل لاس دي
که و چا يې ورکوي که يې اخل يې

جار تر هسي رنځ نيولو شه رحمانه راغل يې
چي شهي/شه□ يې په پوښتنه وي

خدای طاعت، عبادت څه کوي رحمانه
خويې مينه د سړي ده ازميل يې

٢٨

په ځوان□ کښي بد دماغه بد ګمان يې
چه به تل تر تله/هم تر ډيره ژوې هم به ځوان يې

که په دا دي زړه ښه کيږي دا خو نشته
بيهوده د هغو چارو په ارمان يې

چه هر گز دي په لاس نه دي کښيوتوني
هم په خدای هسي باور کړه چه نادان يې

چه بې خدايه زړه ټړ ې په نور څه پوري
ګويا تل به مستقيم په دا جهان يې

هسي رنګ دي و هغه جهان ته شا کړه
لکه ټيټ په لور د خان و د سلطان يې

همره سر دي و خپل خدای وته ټيټ نه دی
هره شپه په مال و ملك باندي/پسي پاسبان يې

يوه شپه په طاعت نه شې روڼولی
پوچ ګوي□ لره بلبل غوندي ګويان يې

په تسبيح دي تانده ژبه وچ لرګی شه
په قلبه پسي په نيمه شپه روان يې

و نمانځه ته چه نمر خيژي هاله پاڅې
چه په لو او په لور ورشې پهلوان يې

اوداسه لره کوزه اخيستی نه شې
که پريوزې و کوهي ته هم دوان/وته روان يې

پېتې سترګي لکه ستور(ي) په ګاڼ□ ګرزي
پښيماني تر پښيمان□ لا پخوا بويه

د هلك په خير به لاس اچوې اور ته
نه هغه چه بيا په تير ساعت پښيمان يې

چه و بل ته نصيحت کا ځان ئي هير وي
نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان يې

چه پيري درباندي در شي بيا ناتوان يې
نور څوك نه دی هغه ته عبدالرحمن يې

٢٩

زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني
واړه ويني، واړه ويني، واړه وينې

خود مي وينې چي په تش کاته دي مرمه سنگينې | لا خنجر په کاږي مُږي دل
هر زمان مي په حضور د سترگو وژنې | لا يقين دي د زړه نه شي بې يقينې
عالم ستا په مينه ژوي نه پوهېږم مينې | زه په څه سبب وژلی يم ستا
ډېر عالم به نورې رنگ کا معلومېږي | تاچي هسې جامې واغوست رنگينې
پښې يې نه وي چي وبله خواته درومي سپينې | هسې سکڼې په غمزه د عاشق
که صورت مې پر بله پورې معلوميږي | زړه مي ستا له غمه چاود دی نازنينې
هغه څوک دی چي ترتابه بهترين وي؟ | ای تر واړو مهرويانو بهترينې
چې دي زلفې د رحمان په زړه وريځ کړې | تر بڼويې ځکه څاڅي اوبه سپينې

څوک له خاورو ايرو پاڅوې تخت ورکړې | څوک له تخته د ايرو په ډيران ول يې

۳۰
ورك شه ورك شه بد کردار و بد سړی | که دي ورور که دي عزيز وي که پردی
تر هغه لا نيکو کار بيگانه ښه دی | چه بد کار شي د چا زوی او يا نمسی
لرگي لوښي همه واړه پرې مردار وي | بد کردار دي سور لنډي يا ورې سپی
هغه خلق به همه واړه ليوني کا | چه په کلي کښي يو سپی شي ليونی
بل علاج د ليونيو سپيو نشته | بې له مرگه چه ترې ډك کاندي کوهی
حرام خور د مخنثو په حساب وي | که په توره يا په تيغ وي ميړنی
ميړ ني ويلي بويه و هغه ته! | چه بې وجهي آزار نه کا هيڅ سړی/کاندي يو شی
ديگ ئي ايښی په ديگدان ړومبی تر تيغ وي | چه ئي سوړ په آه سرد نه شي نغری
هسي فيض ئي و هر چا وته رسيږ ي | چه باله شي د خپل وقت حاتم طی
اې رحمانه چه بد فهم او بد کردار شي | راته وايه سپی بهتر دي که سړی
۳۱
که له ډيره غمه دم د چا ختی لرغونی | زه به مړ وم ستا/ومه په عشق کښې
زړه مي هسي ستا په تورو زلفو بايلود | لکه ورك په توره شپه کا څوك کالی
په يوه ساعت مي رد هم مي قبول کا پردی | نه پوهيږم چه ئي خپل يم که
په يو لاس کښې ئي مرهم په بل خنجر دی | نه په مړيو کښي حساب يم نه ژوندی
که په مرگ د عاشقانو ئي رضا ده/وي | خدای دي ما کا تر همه واړو ړومبی
و کوم دم ته به ادراک د پاړو رسي | هر وښنته يې د کاکل شو منگری
خون بها مي د ستا په مثل نشته سوی | ما پخپله قبول کړی دا خپل
څوك دي غم زما په ډيرو اوښکو نه خوري | کم به نه کا په خوردن سره ندی

د هجران په توره شپه کښي ئي ويريږ م چه ئي نه وينم د وصل سپين سپوږمی
د يار غم لکه (زمری)مزری راباندي راشي خدای دي پيښ نه کا په چا باندي مزری
چه پري غم غلطومه د شپې پاځم کله می په شوڼډو کيږدم کله نی
(ګاه)کله کتاب کله رباب په لاس را واخلم باري درد مي په هيڅ رنګ نه کا کمی
همسايه مي واړه وواته له خوابه/خوبه که په سل کوټو دننه کړم زګيروی
که عاشق تر معشوقې پوري يو سپی وي/دی خدای د هجر په توره مه وژنه يو سپی
زه رحمان د يار په غم کښي هسي ډوب يم چه هيڅ نه وينم په سترګو مګر دی
۳۲
چه دارو د درد و غم وي هغه می ساقي مارا/راکړه يو دوه جامه پياپی
مي د خپلو لبو را نه د انګورو چه اول ئي نوشيدن وي پسې قی
په هر تېغ کښي چه آب نه وي د شرابو ځوك د غم په غليم نه مومي بری
جام د ميو چه غمخوار د کل جهان شه زه به اوسم په دا غم کي تا به کی
راشه يو ځله مي هسي مست خراب کړه چه خبر نه شم له حاله د هيڅ شی
چه له هره غمه خلاص کاندي سړی
بې خودي هسي پناه ده زور آوره چه ئي روغ وګړي بولي ليونی
زه هغه تحصيل تمام ګڼم په عشق کښي آشنا ښه دی البته خوږونکي سپی
رحمان صلحه له رقيب سره پېدا کړه/په دا کا
۳۳
ډيري خولې زما په ياد شکر خوري شوې د چا برخه خاموشي د چا ناري شوې
يو ه برخه خدای هرچا لره ورکړې هزار ځانګې د شمشادو په اره شوې
د چندڼو ونی وسوليدې لاړې د ايام په ګردشونو هديري شوې
په هغو زمکو چه روغې پري ماڼ وې د هجران توري هغو لره تېرې شوې
په دنيا کښي چه بنياد د آشاناي کا چه و چا وته/چاته ئې دعا چاته ښيرې شوې
دا فلک خدای پيدا کړو دا ئي خوي دی
د دنيا د محلونو ښتې واړه و رحمان ته د سرونو منارې شوې
بيا زما په زمانه خاورې ايرې شوې
۳۴
بوصلِ تو مارا کجا هاته هې که وصلِ تو خيلې بړې بات هې
بَکوی تو ګفتم که مسکن کنم ولې کی مرا اين درجات هې
خمِ زلفِ تو ګوشه ابروان دلم را عجائب مقامات هې
مکن پيش من وصف خورشيد و ماه که از حسنت اين کم علامات هې
همی دادې دشنام و ګالي مرا بسويم همين از تو سوغات هې
نګاهت نه امروز خونم بريخت که دايم ترا همچون عادات هې
ز آغوش رحمن مرو با رقيب که اين سفله بد خوئ و بد ذات هې

## مخمس

هغه یار چه ښایسته دی تر آفتابه مخ به کله را څرگند کا له نقابه/حجابه
بیلتانه په زړه زهیر کړم بې حسابه یو سبب وکړې مسبب الا سبابه
چه زما ملاقات وشي له احبابه
ملاقات د ښایسته ۏ مي نصیب کړې د ښایست په گلستان مي عندلیب کړې
عندلیب مي په گلشن د خپل حبیب کړې خدایه ما په دلبرانو کښي قریب کړې
و می ژغورې د دې اهل له عتابه
هغه یار چه زه ئي مینه په دیدار کړم همیشه ئي و دیدن ته انتظار کړم
شپه و ورځ پسي نارې وهم کوکار کړم که په روي ورته تمام جهان رویدار کړم
سترگي نه پورته کوې د ناز له خوابه
بیلتانه ئي پټ پنهم په زړه تاراج کړم و دیدن ته ئي په هسې رنگ محتاج کړم
چه غرقاب ئي د غمونو په امواج کړم هیڅ پایاب ئي مونده نه شي څه علاج کړم
د آشنا د میني غم شه نا پایابه
ته چه کس یې د جمله ۏ بې کسانو هم کار ساز یې د جمله ۏ خام کارانو/کار سازانو
الهی په بزرگ د بزرگانو زه وصال په دعا غواړم د خوبانو
لا به کله دا دعا شي مستجابه
اسیر کړی دي د زلفو په په طناب یم تکبیر کړی دي د سترگو په قصاب یم
د کشت غوندي مدام په اضطراب یم لکه زه چه ستا له غمه په عذاب یم
خبر مه شه هیڅ بنده له دې عذابه
دریغه مه وای په دنیا کښي پیدا شوي او که وای هم په دا هسي شان خومه وای
لکه زه یم د هجران په لنبو سوی څو به گرزم د هجران په اور (الووی)اولوی
چه سینه مي شوه په درست عمر کبابه
هي هي څه مي دا خراب خاطر ناښاد شه زیست روزگار مي همیشه آه و فریاد شه
عمارت مي د زړه هسي رنگ برباد شه چه حباب غوندي بې ببخه بې بنیاد شه
د ښاد/بنیاد طمع به څه/څو کړم له حبابه

پټ پټ ګرزم د ناصح له نصيحته راته کاندي نصيحت په څو صورته
چه توبه کړم د خوبانو له قربته هيڅ ځواب ئي په ما نه شي له غيرته
در مانده ورته ولاړ يم لاجوابه
دا ځواب څه هسي نه دی چه په خوله شي د عشق راز څه هسي نه دی چه وايه شي
دا مشکل حکايتونه په ما نه شي د دې بحر بې پايان حساب په څه شي
چه ئي زه و چا ته وايم له حسابه
چا موندلي د دې بحر پايان نه دی دغه راز و هر سړی ته عيان نه دی
هيچا کړی د دې چارې بيان نه دی دغه واړه عاشقي ده رحمان نه دی
چه په خوله کښي در و لعل لري سيرابه
۳۶
ستا جفا د حد په هورته ده صنمه تل مي اوښکي موج وهي د زړه له يمه
څو به پټه دا قصه اوسي پنهمه هسي ډوب په فکر تللی يم له غمه/پروت يمه بې دمه
نه پوهيږم چه په غره يم که په سمه
که خبر وای له دې هسي رنګ خوار ما به نوم اخيستي نه ؤ د يار
ستا د غم په درياب ډوب يم تر مر بې تا نه لرم هيڅوك د دستګير
مګر ته پخپله لاس را کړې همدمه
ما وې نوربه آشنائي له هيچا نه کړم هم په دا رنګه مي نيت وه بارې څه کړم
د قسمت علاج په چا شي چه ئي زه کړم که په سل رنګه تالاش و تدبير وکړم
خلاصی نه مومم له لوحه له قلمه
خوبرويان که بې وفا دي خو هم وړه دي عاشقان که وفا دار دي خو هم پړه دي
ستا له غمه هر چه دي زما په زړه دي اوس به حال و چا ته (څه) وايم چه څه دي
غرض دا دی چه زه ګرم يم ته ناګرمه
يو خو دا چه په صورت ئي پري روېه هم په خوي و په خصلت فرشته خويه
هم په قد و په قامت هر ګوره لويه بيا به نه مومي څوك تا غوندي دل جويه
که ئې غواړې په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زه په ځان کړم هسي چارې چه دښنه ئي وبله نه کا
گلعذارې
ته په څه سبب زما نه دل آزارې دا زما گناه راوښیه دلدارې
چه توبه کړم نصوحا غوندې محکمه
لاس تر غاړه د رقیب سره خندا کړې چه ما ووینې له قصده راته شا
کړې
خدای ئي ويني هغه چاري چه په ما کړې تر ابدي ورځې پوري به
جفا کړې
که به کله و جار ووزې له ستمه
تا چه هسي بې نیازي د ځان پېشه/توښه کړه په عاشق دي د
خندا زمکه متره کړه
بیا دي ورځ په غریبانو توره شپه کړه نور دا هسي د جفا خویونه مه
کړه
خلقه به دي له جوره شي برهمه
ستا زما له میني هر څوك خبر دار دي دا خبرې کوراکور په هر
دیار دي
چه فلانا فلانا سړي سره دوستدار دي اوس په بیرته جار واته و ما ته عار دي
چه رسوا شوم تر عرب و تر عجمه
هغه ژوي چه په تا باندي مین وي په وگړي به رسوا لکه کوهکن
وي
همیشه انگشت نما په مرد و زن وي چه دانخښې په کښي نه وي
دروغژن وي
که په هره گړ خوري هزار قسمه
نشانه د عاشقانو اول دا ده چه مدام ئي سریکار وي له فریاده
تل نامه د بدنام وي پرې زباده نه ویرېږي له پیغوره له اهداده
بې د یار د جدای له ماتمه
هر چه زړه ئي مبتلا شي په بتانو زیست ئي نه شي یو ساعت بې
مهرویانو
که څوك ورکړي بادشاهي د بادشاهانو په نسبت د هغو سویو
سوختگانو
دا متاع ده تر یوه خسړي /خسنې کمه
که سلیمان غوندي مسند ئي په هوا وي په سبب د عاشق به
خاك پا وي
همیشه به په فریاد و په غوغا وي چه دا هسې نشانې په کښي
پیدا وي
ترو هاله پرې عاشقي ده مسلمه
عاشقي دي هیڅوك نه گڼي اسانه دا خبره ده له حده پهورته گرانه
وصال نه دی چا موندلی بې هجرانه ته له ځان سره اتکل وکړه
رحمانه

